دریم – انسان کولای شي خپله روغتیا وساتي، پدې ډول چې روغتیایي نظم او اعتدال مراعت کړي او لکه څنګه چې قرآن کریم امر کړئ دئ نه له هغه میزان او حد څخه تیرئ وکړي او نه کمئ.

څلورم – هر انسان روغتیایي مسئولیت لري او پرې لازم دي چې په بشپړ ډول دخپلې روغتیا ساتنه وکړي او لکه چې په حدیث شریف کې راغلی دنا روغی څخه دژغورنې په مقصد له خپلې روغتیا څخه ګټه واخلي.

پنځم – له کومې تګ لارې څخه چې انسان پخپل ژوند کې پیروي کوی، پر روغتیا باندې یې بنسټیز رول لري.

شپږم – داسلامي ژوندانه په تګ لیاره کې هغه مثبتې لارې چارې شاملې دي چې دروغتیا دښه توب او پیاوړ توب لپاره وي او کومې منفي لارې چارې او تګ لارې چې دروغتیا مخالف وي، هغه نه مني.

اووم – لکه څنګه چې قرآن عظیم الشان اسلام تعریف کړئ چې دا یو فطرت دئ چې انسانان یې دهغه له مخې خلق کړي نو داسلامي ژوندانه دتګ لارو مراعتول په حقیقت کې داصلي انساني طبیعت تحقیق او په بدن، روح وګړی، کورنۍ، ټولنه، انسان او دژوند په چاپیریال کې دسنت الله همآهنګه کول دي.

اتم – کومه وثیقه یا سند چې ددې اعلامیې سره ضمیمه ده دهغو موضوعګانو مجموعه ده چې له قرآنی آیتونو او نبوي سنتو څخه استخراج شوي او دانسان دروغتیا دښه والي او په عمومي ډول دهغه په ودې کې اساسي رول لري، او ددې اعلامیې نه جلا کیدونکئ جزء دئ.

نهم – دغه کنفرانس له ټولو نړیوالو سازمانونو، حکومتونو، رضاکارو او غیر حکومتي سازمانونو څخه غوښتنه او هیله کوي چې داسلامي ژوندانه تګ لارې ته دتشویق پر بنسټ خلک دروغتیا ښه والي او په ځانګړي ډول لاندې ټکو ته وهڅوي او راوبولي:

۱- داسلامي ژوندانه تګ لار چې دخلکو روغتیا ته ښه توب وربخښي وپيژني او دهرې سيمې لپاره دتبليغ دمناسبو وسيلو څخه په کار اخستلو سره دهغو خلک دې ته راوبولي.

۲- دروغتيا دښه توب وسايل او شرطونه او دصحي ژوندانه تګ لار خلکو ته برابره کړي، داعلاميې له موادو څخه سرغړونه ونکړې چې دا سرغړونه به ددوی دروغتيا په تاوان وي. هغه څه چې روغتيا ته زيان رسوي له هغو څخه منع کړای شي او دروغتيا مخالف تګ لارې او سلوک له رواجولو څخه ډډه وشي.

۳- خلک دې ته راوهڅوي چې پخپلو ځانونو باور ولري، محلي پيداوارو ته پراختيا ورکړي چې دصحي ژوندانه دتګ لارې لپاره يو ښه عملي مدرک دئ.

٤- دروغتيايي، تعليمي، فرهنګي او نشراتي موسسو، دهغو لارښوونو تکرارول چې دروغتيا دښه والي په مقصد وي او دصحي ژوندانه تګ لارې ته هڅونه پکښې وي په تيره بيا هغه موضوعګانې چې ددې اعلاميې په وثيقه کې راغلي دي.

۵- دروغتيايي تعليمي موسسو دهغو لارښوونو تکرارول چې صحي مسئولينو ته دهغو ددندې او مسئوليت په هکله وي، هغوی ته بايد وپوهول شي چې روغتيايي دنده دهغو يو مسئوليت او رسالت دئ نه يوازې يو کسب او عمل.

٦- کوم کوښښونه او هلې ځلې چې داسلامي ژوندانه غوره کولو په مقصد دمقاماتو لخوا سرته رسيږي، دملاتړ لپاره يې بايد تعهد وکړي.

# دعمان اعلاميې ضميموي سند يا وثيقه

**۱- روغتيا تر ټولو ستر الهي نعمت دئ، بلکې تر ايمان وروسته تر ټولو لوی نعمت او د امنيت او لمړنيو بنسټيزو اړتياوو د پوره کيدو سره يو ځای د نيکمرغه ژوند ضامن دئ.**

● حضرت رسول اللهﷺ فرمايي: «**نعمتان، مغبونٌ فيهما كثيرٌ من الناس: الصحة والفراغ**» يعنې دوه نعمته دي چې ډير خلک پکښې تيروتي او په قدرېې نپوهيږي، چې يو يې روغتيا او بل فارغ وخت دئ. (دبخاری په روايت له ابن عباس او ترمذی او ابن ماجه او امام احمد څخه) .

● حضرت رسول اللهﷺ فرمايي: «**ما أوتى أحد بعد اليقين خيراً من معافاة**» يعنې له ايمان څخه وروسته هيچا ته له سلامتی څخه غوره نعمت ندئ ورکړ شوئ. (دابن ماجه په روايت له ابی بکر څخه) .

● حضرت رسول اللهﷺ فرمايي: «**من أصبح منكم آمناً في سربه، معافى في جسده، عنده قوت يومه، فكأنما حيزت له الدنيا بحذافيرها**» يعنې هر څوک له تاسو څخه چې په عافيت له خوبه راپاځي، بدن يې روغ او سلامت او خپل ورځني خواړه ولري، داسې ده لکه چې ټوله دنيا يې په واک کې وي. (د ترمذی په روايت له عبدالله بن محصن انصاری څخه او د پلار په قول يې داحسن حديث دئ) .

**۲- دروغتيا دنعمت خوندي ساتنه او زياتوالئ يې په شکر سره کيږي او له هغو څخه مقصد په عمل کې دهغو ساتنه او بهترول دي او دهغو کړو وړو نه کول دي چې روغتيا ته زيان ورسوي او يا دهغه دبدلون سبب وګرځي چې دا بدلون بيا د دې نعمت دزوال (ناروغی) سبب شي.**

● الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿لَئِنْ شَكَرْتُمْ لأَزِيدَنَّكُمْ﴾ (الابراهيم: ۷) يعنې که

مو شکر وکړ خپل نعمت به زيات کړو.

- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿ ذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ لَمْ يَكُ مُغَيِّراً نِعْمَةً أَنْعَمَها عَلىٰ قَوْمٍ حَتّىٰ يُغَيِّرُوا ما بِأَنْفُسِهِمْ ﴾ (الانفال:٥٣) يعنې دا کار ددې لپاره دئ چې خدای (ج) چې کوم نعمت چا ته ورکړ هغه ته تغير نه ورکوي، ترڅو چې پخپله تغير ورکړي هغه څه ته چې په نفس کې يې دي (لکه عقيده، نيت، اعمال).
- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿ وَمَنْ يُبَدِّلْ نِعْمَةَ اللّٰهِ مِنْ بَعْدِ ما جاءَتْهُ فَإِنَّ اللّٰهَ شَدِيدُ العِقابِ ﴾ (البقره:٢١١) يعنې څوک چې دالهی نعمت له ورکړې نه پس هغه بدل کړي نو دخدای (ج) په وړاندې دشديد عذاب لرونکئ دئ.

## ٣- صحي خواړه - متوازن خواړه دي ترڅو هغه نظم تحقق پيدا کړي چې خدای (ج) په هر شی کې ايښئ دئ.

- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿ وَوَضَعَ المِيزانَ، أَلاَّ تَطْغَوْا فِي المِيزانِ، وَأَقِيمُوا الوَزْنَ بِالقِسْطِ، وَلا تُخْسِرُوا المِيزانَ ﴾ (الرحمن:٧-٩) خدای (ج) ميزان او حد وضع کړئ چې له هغو څخه تيرئ ونشي، وزن په عدالت سره وکړی او په ميزان کې کم مه ورکوی.

## ٤- دپاکو او ستره خوړو، خوړل او دناپاکو خوړو څخه ډډه کول... ستاسو دروغتيا ضامن دئ.

- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿ كُلُوا مِنْ طَيِّباتِ مَارَزَقْناكُمْ ﴾ (البقره:١٧٢) يعنې له هغو پاکو شيزونو څخه وخورئ چې در ته مو درکړي دي.
- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿ كُلُوا مِمّا فِي الأَرْضِ حَلالاً طَيِّباً ﴾ (البقره:١٦٨) يعنې دځمکې دمخ له پاکو او حلالو شيزونو څخه وخورئ.
- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الخَبائِثَ ﴾ (الاعراف:١٥٧) يعنې ناپاکه شيزونه يې ورته حرام وګرځول.

**٥- بې له شرعي دليل څخه له پاکو او ستره خوړو څخه ډډه کول د روغتيا سره په تضاد کې ده او اسلام هغه ته اجازه نه ورکوي.**

- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿لا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ﴾ (المائدة: ٨٧) يعنې هغه پاک څيزونه چې خدای (ج) درته حلال کړي دي په ځان حرام مه ګرځوئ.

**٦- صحي خواړه په لمړي قدم کې هغه دي چې د مقدار له پلوه متوازن وي، نو ځکه زياتوئ يا اسراف او پرخوري روغتيا ته زيان لري او د زياتو ناروغيو سبب کيږي او دا د اسلام د لارښوونو مخالف ده.**

- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿وَكُلُوا وَاشْرَبُوا وَلَا تُسْرِفُوا﴾ (الاعراف: ٣١) يعنې وخورئ وڅکئ او اسراف مه کوئ.
- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ وَلَا تَطْغَوْا فِيهِ﴾ (طه: ٨١) يعنې له پاکو څيزونو څخه چې درکړي مو دي وخورئ او زياتی او تيری مه کوئ.
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**ما ملأ آدميٌ وعاءً شراً من بطنه؛ بحسب ابن آدم لُقيماتٌ يُقِمْنَ صُلبَه**» يعنې د آدم اولادې تر خپل ګيډې لوښئ زيات ندئ ډک کړئ، هغه ته څو مړۍ (ګولې) بس دي چې بدن يې پرې استوار وي (د ترمذي او ابن ماجه په روايت له مقدام بن معدي کرب څخه او وايي چې حسن حديث دئ).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**إن أكثر الناس شِبَعاً في الدنيا، أطوَلُهم جوعاً يوم القيامة**» يعنې هغه خلک چې په دنيا کې ځان ډير مړوي، د آخرت په ورځ يې د لوږې موده تر ټولو اوږده ده. (د ابن ماجه په روايت له سلمان څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**طعام الواحد يَكْفي الاثنين، وطعام الاثنين يكفي الأربعة، وطعام الأربعة يكفي الثمانية**» يعنې د يوه کس خواړه دوو ته، د دوؤ خواړه څلورو ته او د څلورو خواړه اتو کسو ته کفايت کوي. (د مسلم په روايت

له جابر څخه) ٠

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**المؤمنُ يأكلُ في معىً واحدٍ والكافرُ يأكلُ في سبعة أمعاء**» يعنې مسلمان په يوه کولمه خوراک کوي او کافر په اووه کولمو. (دبخاری، مسلم او ابن ماجه په روايت له ابوهريرة څخه)

**٧- صحي خواړه په دوهم قدم کې هغه دي چې دمحتوي او کيفيت له پلوه متوازن وي او دا هغه ډول ډول خواړه دي چې خدای(ج) خپلو بنده ګانو ته پيدا کړي تر څو دبدن اړتياوې يې پوره شي لکه: پروتين، غوړ، شکره، مالګه او دويټامينونو بيلابيل ډولونه.**

- الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿وَالأنْعامَ خَلَقَها لَكُمْ فِيها دِفْءٌ وَمَنافِعُ وَمِنْها تأكُلُون﴾ (النحل: ٥) يعنې حيوانات مو تاسو ته پيدا کړي چې په هغو کې دګرمی وسايل او ګټې شته او له هغو څخه خورئ.
- الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿والبُدْنَ جَعَلْناها لَكُمْ مِنْ شَعائِرِ اللهِ لَكُمْ فِيها خَيْرٌ﴾ (الحج: ٣٦) يعنې اوښ او غوايئ مو دخدای ددين دشعايرو (دحج دمناسکو لپاره) په حيث دروګرځول چې په هغو کې ستاسو خير او برکت دئ.
- الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿وَهُوَ الَّذي سَخَّرَ البَحْرَ لِتَأْكُلُوا مِنْهُ لَحْماً طَرِيّاً﴾ (النحل: ١٤) يعنې خدای(ج) هغه ذات دئ چې بحر يې تاسو ته تسخير کړی چې تازه غوښې ورڅخه وخورئ.
- الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿يُنْبِتُ لَكُمْ بِهِ الزَّرْعَ وَالزَّيْتُونَ وَالنَّخِيلَ وَالأعْنابَ وَمِنْ كُلِّ الثَّمَراتِ﴾ (النحل: ١١) يعنې داوبو په وسيله درته زيتون، خرما، انګور او ډول ډول ميوې راشنه کوي.
- الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿نُسْقِيكُمْ مِمَّا فِي بُطُونِهِ مِنْ بَيْنِ فَرْثٍ وَدَمٍ لَبَناً خالِصاً سائِغاً لِلشّارِبِين﴾ (النحل: ٦٦) يعنې تاسو ته مو دڅښاک لپاره دحيواناتو له نس څخه شيدې چې دخوشايو او وينې ترمنځ واقع ده برابرې

کړي او دا هغه شیدې دي چې پاکې او خالصې او د څښونکو لپاره بې خوندورې دي.

- الله تعالی (ج) فرمایي: ﴿ يَخْرُجُ مِنْ بُطُونِهَا شَرَابٌ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ فِيهِ شِفَاءٌ لِلنَّاسِ ﴾ (النحل:۶۹) یعنې د شاتو مچۍ له ګېډې څخه څښاک راوځي چې ډول ډول رنګونه لري او د خلکو لپاره شفا ده.
- الله تعالی (ج) فرمایي: ﴿ كُلُوا مِنْ ثَمَرِهِ إِذَا أَثْمَرَ ﴾ (الانعام:۱۴۱) یعنې کله چې میوه پخه شوه له هغه څخه وخورئ.
- الله تعالی (ج) فرمایي: ﴿ وَأَخْرَجْنَا مِنْهَا حَبًّا فَمِنْهُ يَأْكُلُونَ ﴾ (یس:۳۳) یعنې له ځمکې څخه مو مړې دانې رابرسېره کړې چې له هغو څخه خوري.

**۸- اسلام بشپړ خواړه غوره بولي د مثال په ډول ښه میده شوو اوړو ته پر نه میده شوو اوړو ترجیح ورکول کیږي.**

- له ام ایمن څخه روایت دئ چې اوړه مې غلبیل کړل او پیغمبر ﷺ ته مې ډوډۍ پخه کړه، کله مې چې ورته ورکړه ویل یې دا څشي دي؟ ومې ویل دا زمونږ د وطن خواړه دي چې ومې غوښتل ډوډۍ ترې درته پخه کړم. ویې فرمایل هغه بیرته یوسه ښه یې میده کړه او بیا یې لامده کړه. (د ابن ماجه په روایت له ام ایمن څخه).

**۹- د هغه څه خوړل جواز نلري چې طبیبان یې مضر بولي ځکه چې په هغو کې تیرئ دئ چې جواز نلري.**

- الله تعالی (ج) فرمایي: ﴿ لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوا ﴾ (المائده:۸۷) یعنې پاک او ستره شیزونه یې چې درته حلال کړي، هغه په ځان مه حراموئ او د خدای له امره څخه تیرئ مه کوئ.

**۱۰- اسلام امر کوي چې خواړه وپوښل شي ترڅو ککړ نشي.**

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**غطوا الإناء**» یعنې د لوښو سرونه وپوښئ (د ابن ماجه په روایت له جابر څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «خَمِّروا (غطُّوا) الطعام والشراب» يعني دخوړو او څښاک مخ وپوښئ. (دبخاري په روايت له جابر څخه).

**۱۱- هغه اوبه چې خدایؑ له آسمانه نازلوي پاکې ستره او دڅښاک او پاکولو لپاره مناسبې دي.**

- الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿أَنْزَلَ مِنَ السماء ماءً لَكُمْ مِنْهُ شَرَاب﴾ (النحل: ۱۰) يعني له آسمان څخه یې اوبه درته نازلې کړې چې دڅښلو وړ تيا لري.
- الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿وَأَنْزَلْنا مِنَ السَّماء ماءً طَهُوراً﴾ (الفرقان:۴۸) يعني له آسمان څخه مو پاکوونکې اوبه نازلې کړې.
- الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُمْ مِنَ السَّماء ماءً لِيُطَهِّرَكُمْ بِهِ﴾ (الانفال: ۱۱) يعني او له آسمان څخه تاسو ته اوبه رانازلوي تر څو دهغو په وسيله تاسو پاک کړي.

**۱۲- دمسلمان لپاره جواز نلري چې اوبه او په خاصه توگه ولاړې اوبه ککړې کړي. او هغه ته لازم ندي چې په هغو کې بولې او د کې وکړي، حتی اجازه نلري چې په ولاړو اوبو کې غسل وکړي یا ولامبي.**

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «لا يبولنَّ أحدُكم في الماء الراكد» يعني هيڅ يو له تاسو څخه بايد په ولاړو اوبو کې بولې ونکړي. (دابن ماجه په روايت له ابوهريره څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «لا تبُل في الماء الدائم (الراكد) الذي لا يجري ثم تغتسل منه» يعني په ولاړو اوبو کې بولې مه کوئ چې بيا پکښې غسل وکړئ. (دمسلم په روايت له ابوهريره څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «لا يبولن أحدكم في مستحمه ثم يغتسل فيه» يعني هيڅ يو له تاسو څخه بايد په خپل حمام کې بولې ونکړي چې بيا په هغه

کې غسل کوی. (دابو داوود په روایت له عبدالله بن مغفل څخه) .

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**لا يغتسلنَّ أحدُكم في الماء الدائم (الراكد) وهو جنبٌ**» یعني که چیرې جنوب یاست نو په ولاړو اوبو کې به غسل نه کوی. (دمسلم او نسایي په روایت له ابوهریره څخه) .

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**اتَّقو الملاعن الثلاث: البراز في الموارد وقارعة الطريق والظلِّ**» یعني دلعنت له دری سببونو څخه ځان وساتئ: بولې او ډکې کول دخلکو په اوبو خور یا داوبو اخستلو په ځای کې، په څلور لارې کې او په سیوري کې. (دابوداوود په روایت له معاذ بن جبل څخه) .

**۱۳- هر مسلمان ته لازمه ده چې اوبه دمضرو حشرو او دناروغیو دانتقال دنورو عواملو دلویدلو څخه خوندي وساتي.**

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**أوكوا الأسقية وخمِّروا (غطو) الطعام والشراب**» یعني خپل دخوراک او څښاک لوښي وپوښئ. (دبخاری په روایت له جابر څخه) .

**۱٤- عمومي نظافت دروغتیا له ارکانو څخه ده چې اسلام پرې امر کوي چې دا دغسل په وسیله یعني دجمعې دورځې دغسل، دجنابت دغسل او هره ورځ څو ځله اودس کولو په وسیله ترلاسه کیدای شي.**

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**الطَّهورُ شطرُ الإيمان**» یعني پاکي او نظافت دایمان جز دئ. (دمسلم په روایت له ابو مالک اشعری څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**حقُّ الله على كلِّ مسلم أن يغتسل في كلِّ سبعة أيام: يغسل رأسه وجسده**» یعني دخدای حق پر مسلمان دا دئ چې په هرو اووه ورځو کې یو وار غسل وکړي چې خپل سر او بدن ووینځي. (متفق علیه له ابو هریره څخه) .

- الله تعالی (ج) فرمایي: ﴿وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُباً فَاطَّهَّرُوا﴾ (المائده: ٦) یعني که

جنوب وی غسل وکړي.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**لا يحافظُ على الوضوء إلا مؤمن**» يعني له مسلمان پرته بل څوک په اوداسه مداومت نه کوي. (ددارمي او ابن حبان په روايت له ثوبان څخه).

## ۱۵- داسلام له نظره ضرور ده چې که چيرې لاس په کوم ناپاک يا ناولي څيز ولګيږي، بايد وو‌ينځل شي او همدارنګه مخکې له خوړو او وروسته له هغو څخه بايد دواړه لاسونه وو‌ينځي.

همدارنګه په اوداسه کې دواړه لاسونه بايد په تکرار سره وو‌ينځل شي.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**من بات وفي يده ريحُ غمرٍ (دسم) فأصابهُ شيء فلا يلو منّ إلا نفسهُ**» يعني که څوک بيده شي لاس يې غوړ وي او څشئ په هغه ولګيږي پرته له خپل ځانه دې بل څوک نه ملامتوي. (دترمذی او ابن ماجه په روايت له ابوهريره څخه).

- «**كان ﷺ إذا أراد أن يأكُلَ غسل يديه**» يعني کله چې رسول الله ﷺ غوښتل ډوډۍ يا خواړه وخوري دواړه لاسونه به يې وينځل. (دنسايی په روايت له بی بی عايشې څخه).

- «**صحّ أنه عليه الصلاة والسلام، أكل كتف شاةٍ فمضمض وغسَلَ يديه**» يعني صحيح حديث دئ چې حضرت پيغمبر ﷺ دپسه اوږه وخوړه او خپله خوله او لاسونه يې وو‌ينځل. (دابن ماجه په روايت له ابوهريره څخه).

- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ... ﴾ (المائده:٦) يعني کله چې دلمانځه اراده کوئ نو مخ، لاسونه تر څنګلو او... وو‌ينځئ.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**إذا توضّأت فخلّل بين أصابع يديك ورجليك**» يعني کله مو چې اودس کاوه دلاسونو او پښو دګوتو منځونه مو

بسم الله الرحمن الرحیم

## ســریــزه

د ډاکتر عبدالرزاق جزائري
د نړیوالې روغتیایي ادارې د ختیځې مدیترانې
د سیمه ایز دفتر مدیر
لیکنه

خدای (ج) انسـان ته ظاهري او مـعنوي نعمـتـونه ور په برخـه کـړي چې تر ټولو لوی نعمت یې روغتیا ده او پیغمبر حضرت محمد ﷺ هغه یو له دوو نعمتونو څخه بولي چې ډیر انسانان پکښې تیروځي او په قدر یې نړوهیږي. الهي قانون په نعمتونو کې ثابت دئ او بدلون نه مومي. کوم نعمت چې الله (ج) د چا په برخه کړی، هغه ته تغیر نه ورکوي مگر دا چې هغه څوک یا قوم تغیر ورکړي هغه څه ته چې په نفس کې یې دي. لکه چې فرمایي:
﴿ذَلِكَ بِأَنَّ اللَّه لَمْ يَكُ مُغَيِّراً نعْمَةً أَنْعَمَهَا عَلَى قَوْمٍ حتَّى يُغَيِّروا مَا بِأَنْفُسِهِم!﴾ که چیرې انسان د روغتیا له نعمت څخه گټه واخلي او د هغې ساتنه وکړي، د هغه د ښه والي، ودې او تقویت لپاره کار وکړي نو یوه ټینگ شی ته یې منگولې اچولې، له خیر، برکت او عافیت څخه برخه من شوئ او د ډول ډول ناروغیو څخه ژغورل شویدئ. د هغـه بریالیتـوب په ژوند کـې د هغـه د ژوندانه د هغې تگ لارې مرهون دئ چې د خپلې روغتیا ښـه والي ته یې پاملرنه کړې، داسې کـار یې کړئ چې د هغـه د روغـتیا د خوندي ساتنې سبب کیږي، په وقـایه کـې یې کـوښښ کړئ چې له خرواړونو مـعـالجې څخه ښه او

خلال اووينځي. (د ترمذي په روايت له ابن عباس څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**نقُّوا بَرَاجِمكُم (أي مفاصل أصابِعكم)**» يعنې د ګوتو مفصلونه مو ښه پاک کړئ. (په نوادر الاصولو کې د حکيم ترمذي په روايت له عبدالله بن بشر المازني څخه)

## ۱۶- همدارنګه نظافت ته په پاملرنې سره، لازم ده چې په اوداسه کښې پښې ښې پاکې وووينځل شي.

- الله تعالى(ج) فرمايي: ﴿إِذا قُمْتُمْ إِلىٰ الصَّلاة فاغْسلُوا ... وَأَرْجُلَكُمْ إِلىٰ الْكَعْبَيْنِ﴾ (المائده:٦) يعنې کله چې لمانځه ته راپاڅېدئ، نو... او پښې مو تر بجلکونو يا ښنګرو ووينځئ.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**إذا توضَّأت فخلِّل بين أصابع يديک ورجليک**» يعنې چې کله مو اودس کاوه د لاسو او پښو د ګوتو ترمنځ مسافې مو خلال کړئ. (د ترمذي په روايت له ابن عباس څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**ويلٌ للأعقاب من النار ... أسبِغُوا الوضوء**» يعنې د دوزخ عذاب هغه چاته دئ چې په اوداسه کې يې د پښو شاناولې پاته شي... خپل اودس بشپړ کړئ (دابوداوود په روايت له عبدالله بن عمرو څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**أسبغ الوضوء وخلل بين الأصابع**» يعنې خپل اودس بشپړ او د ګوتو ترمنځ مسافې مو خلال او ووينځئ. (دابن ماجه په روايت له لقيط بن صبره څخه).

- «**كان ﷺ أذا توضّأ يدلُکُ أصابع رِجْلَيه بخِنْصره**» يعنې رسول الله ﷺ به چې اودس کاوه نو په خچې ګوتې به يې د پښو د ګوتو منځونه خلالول او ووينځل. (دابوداوود په روايت له مستورد بن شداد څخه).

## ۱۷- دغوږونو پاکولو ته بايد پاملرنه وشي، هغه څو ځله مسح شي او د غوږونو منځونه ښه پاک شي.

- «**صح أنه ﷺ مسح أذنيه: داخلهما بالسبابتين وخالف إبهاميه إلى ظاهر أذنيه فمسح ظاهرهما وباطنهما**» يعنې صحيح حديث دئ چې پيغمبر ﷺ به خپل دغوږو منځونه په سبابه ګوتو او بيرون به يې په ابهام ګوتو مسح کول يعنې هم به يې دغوږونو داخل او هم بيرون مسح او پاکول. (دابن ماجه په روايت له ابن عباس څخه)

**۱۸- دسترګو نظافت ته پاملرنه لازم ده په اوداسه کې دمخ دجز په حيث سترګې څو واره بايد وويڅل شي، دسترګو کونجونه پاک شي ترڅو دسترګو افرازات پکښې تول نشي.**

- «**صح أنه ﷺ كان يمسح الماقين**» په صحيحو احاديثو کې دي چې پيغمبر ﷺ به دسترګو دواړه کونجونه مسح کول. (دابن ماجه په روايت له ابوامام څخه)

**۱۹- دپوزې نظافت او ستره ګي ته هم پاملرنه ضروري ده چې دا داوبو استنشاقول پوزې ته او سونل يې دي.**

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**إذا توضأ أحدكم فليستنشق بمنخريه من الماء ثم لينتثر**» يعنې کله چې څوک له تاسو څخه اودس کوي بايد خپله پوزه په اوبو سره انشاق او بيا سوڼ کړي. (دمسلم په روايت له ابو هريره څخه) .

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «استنثروا مرتين بالغتين أو ثلاثا» يعنې خپله پوزه دوه - درې وارې ښه سوڼ کړئ. (دابن ماجه په روايت له ابن عباس څخه) .

**۲۰- لازمه ده چې د بولو يا متيازو او دکو مخرجونه او تناسلي غړي داستنجاء په وسيله په اوبو پاک وويڅل شي او يا يې په کوم بل شيز لکه لوټه، توکر يا ډبره پاک کړي.**

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**إذا تغوّط أحدكم فليتَمَسَّح ثلاث مرّات**» يعنې کله چې ستاسو څخه څوک ډکې کوي نو لازم ده چې درې وارې ځان پاک کړي. (په محلى کتاب کې دابن حزم په روايت له محمد بن عبدالله بن مسلم څخه)

- **عن أنس: «كان النبي ﷺ إذَ تبرَّزَ لحاجَتِه أتيتُهُ بماءٍ فيغسلُ به»** له انس څخه روایت دئ چې کله به حضرت پیغمبر ﷺ د کې کولې نو ما به ورته اوبه راوړې او هغه و ینځه (متفق علیه).

- عن عائشة قالت: «**ما رأيتُ رَسولَ الله ﷺ خرَجَ من غائطٍ قطّ إلاَّ مَسَّ ماءً**» له عايشې څخه روايت دئ هيڅكله ما رسول الله ﷺ ندئ ليدلئ چې له د کو څخه راغلئ وي او اوبه يې نه وي استعمال كړي. (دابن ماجه په روايت).

- قالت السيدة عائشة تعلم نساء المسلمين: «**مُرن ازواجكنَّ ان يستطيبوا بالماء فإنّي اَستحييهِم، فإنَّ رسول الله ﷺ كان يفعلهُ**» حضرت بي بي عايشې مسلمانو ښځوته ښوونه كوله او ويل به يې: خپلو ميړونو ته امر وكړي چې په اوبو استنجا وكړي، ځكه چې زه له هغوی څخه حيا كوم چې ووايم او رسول الله ﷺ همداسې كول. (د ترمذي په روايت).

**۲۱- دنوکانو او ویښتانو اخستل چې چتلي پکښې راټولیږي او همدا رنګه د ویښتانو اکرام او نظافت لازم دئ.**

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**خمسٌ من الفطرة: الختان، و حلقُ العانة، و نتفُ الإبطِ و تقليمُ الأظفارِ وأخذُ الشارب**» يعنې پنځه شيزه په فطرت كې راځي: ختنه يا سنتول، د نامه لاندې ويښتانو كلول، د تخرګ د ويښتانو ليرې كول، د نوكانو او بريتانو اخستل. (د نسائي په روايت له ابو هريره څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**قُصُّوا أظافيركم وَ اَدْفِنوا قُلاماتِكم**» يعنې خپل نوكان واخلئ (قطع كړئ) او تر خاورو لاندې يې ښخ كړئ (د نوادر الاصول په كتاب كې د حيكم ترمذي په روايت له عبدالله بن بشر المازني څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**من كان له شعرٌ فليُكرِمهُ**» يعنې څوک چې ويښته ولري بايد د هغو اكرام او عزت وكړي (د ابو داوود په روايت له ابوهريره څخه).

**۲۲- دين پر مضمضه كولو امر كوي چې له دول دول خوړو څخه د خولې د پاكولو**

**لپاره لازم ده، ځکه چې دا خواړه که په خوله کې پاته شي غاښونو ته تاوان لري.**

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: « **إذ توضأت فمضمض** » يعنې چې اودس مو کاوه نو مضمضه وکړئ (خوله مو ووينځئ) (دابو داوود په روايت له لقيط بن صبره څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: « **مَضْمَضُوا من اللَّبن فإنّ له دسما** » يعنې دشيدو له خوړلو څخه وروسته هم خپله خوله ووينځئ ځکه چې هغه غوړ لري. (دابن ماجه په روايت له ابن عباس څخه).

- **صح ان النبي ﷺ أكَلَ كتف شاةٍ فَمَضْمَضَ** يعنې په صحيح احاديثو کې دي چې رسول الله ﷺ د پسه اوږه وخوړه او مضمضه يې وکړه. (دابن ماجه په روايت له ابوهريره څخه).

- « **خرج ﷺ مرّة مع اصحابه إلى خيبر، ثم دعا بأطعِمَةٍ، فلم يؤت إلا بسويق، فاكلوا و شربوا، ثم دعا بماءٍ فمضمض فاهُ** » يعنې يو وار حضرت پيغمبر ﷺ دخپلو اصحابيانو سره خيبر ته راغئ او خواړه يې وغوښتل، ستاره يې ورته راوړه هغه يې وخوړه اوبه يې وڅښلې او بيا يې اوبه وغوښتې چې مضمضه وکړي (خوله ووينځي). (دابن ماجه په روايت له سويد بن نعمان انصاری څخه).

**۲۳- داوريو پاکول دناروغيو دمخنيوی لپاره لازم ده.**

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: « **نَظِّفُوا لِثَاتِكم من الطعام، و تسنَّنُوا (تسوّکوا)** » يعنې خپلې اورۍ دخوړ له پاتی شونو څخه پاک کړئ او مسواک ووهئ. (په نوادرالاصول کې دحکيم ترمذی په روايت له عبدالله بن بشر المازنی څخه)

**۲٤- اسلام په مسواک وهلو امر کوي او دمسواک او دغاښو برس استعمال دغاښونو او اوريو دخوندي ساتنې لپاره لازم دئ او په هر وخت کې بايد استعمال شي لکه کورته د ننوتلو په وخت، په اوداسه کې، مخکې له خوب**

او وروسته له خوبه څخه.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «السِواکُ مطهرةٌ للفم مرضاةٌ للربّ» يعنې مسواک خوله پاکوي او دخدای (ج) درضايت سبب کيږي: (دنسائی او ابن خزيمه په روايت له صحيحو اسنادو سره له عايشې څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «لولا أن أَشُقَّ على أمّتي لأمرتُهم بالسِواکِ عندَ كلّ وضوءٍ؛ وفي رواية: مع كل وضوء» يعنې که زما په امت تکليف نه وای نوامر به مې کړئ وای چې مخکې له هر لمانځه څخه مسواک ووهي. (ابن خزيمه له مالک څخه) (په هر اوداسه کې)
- «كان ﷺ إذا دخل بيتهُ بدأَ بالسواک»: يعنې کله به چې حضرت پيغمبر ﷺ خپل کورته ننواته نو په مسواک وهلو به يې پيل کاوه. (دمسلم په روايت له بي بي عايشې څخه).
- «كان ﷺ إذ قام من اللَّيل يشُوصُ فمهُ بالسواک» يعنې کله به چې حضرت پيغمبر ﷺ له خوبه را پاڅيد نو په مسواک وهلو به يې پيل وکړ. (متفق عليه له حذيفی څخه).
- «كان ﷺ يُصلّي باللّيل ركعتين ركعتين ثم ينصرفُ فيستاک» يعنې رسول الله ﷺ به هره شپه دوه دوه رکعته لمونځ کاوه، چې لمونځ به يې خلاص کړ، مسواک به يې استعمالاوه. (دابن ماجه په روايت له ابن عباس څخه).
- «كان ﷺ لا يرقُدُ من ليلٍ و لا نهارٍ فيستيقِظُ إلا تسوّک قبل أن يتوضّأ» يعنې حضرت پيغمبر ﷺ به چې دورځې يا شپې له خوبه راويښ شو، مخکې لدې چې اودس وکړي، نو مسواک به يې واهه. (دابوداوود په روايت له بي بي عايشې څخه)

## ۲۵- دبدن پياوړتوب دمناسبو سپورتونو په وسيله داسلامی ژوندانه غوښتنه ده.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «وإنّ لجسدک عليک حقاً» يعنې ستاسو بدن پر تاسو حق لري. (دمسلم په روايت له عبدالله بن عمرو څخه).

● حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**المؤمنُ القويُّ خيرٌ من المؤمن الضعيف**» يعني غښتلئ مسلمان غوره او بهتره دي تر کمزوري مسلمان. (دمسلم په روايت له ابی هريره څخه).

● حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**احرص على ما ينفعُک**» يعني په هر څه کې چې ستاسو ګټه ده په يکښې حريص اوسئ. (دمسلم او ابن ماجه په روايت له ابوهريره څخه)

## ۲۶- داسلام په نظر کور دبدني او روحي هوسايي ضامن ده، په هغه کې پاکي او نظافت شرط دئ، لوی او پراخ کور غوره دئ.

● الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِنْ بُيُوتِكُمْ سَكَناً﴾ (النحل: ۸۰) يعني خدای(ج) ستاسو کورونه، ستاسو دهوسايي وسيله ګرځولي.

● حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**نظِّفوا أفنِيَتَكم**» يعني خپل انګړونه پاک وساتئ. (د ترمذی په روايت له عامر بن سعد، له پلار څخه يې).

● حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**أربعٌ من السعادة: المرأة الصالحةُ والمسكن الواسعُ والجارُ الصالحُ و المركبُ الهنيءُ**» يعني څلور څيزونه نيکمرغي او خوشبختي ده: صالحه ښځه يا مانديينهٔ لويه او پراخه حويلئ، نيک او صالح ګاونډيان او آرام مرکب يا خر. (دابن حبان په روايت له صحيحو اسنادو څخه).

## ۲۷- جامې هم يو الهي نعمت دئ چې دهغه په وسيله ګرمي او يخني دفع کيږي دښکلا او ښايست وسيله ده خو پدی شرط چې نظافت او پاکي يې مراعت شي.

● الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿قَدْ أَنْزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاساً يُوارِي سَوْءَاتِكُمْ وَرِيشاً﴾ (الاعراف: ۲۶) يعني تاسو ته موږ جامې درکوزې کړې چې شرم ځای مو وپوښي او همدارنګه د زينت جامونه.

● الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿وَجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيلَ تَقِيكُمُ الحَرَّ﴾ (النحل: ۸۱)

يعنې جوړ يې کړل درته جامونه چې وساتي تاسو له ګرمۍ او يخنۍ څخه.

- الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿وَالأَنْعَامَ خَلَقَهَا لَكُمْ فِيهَا دِفْءٌ﴾ (النحل: ٥) يعنې حيوانات يې خلق کړل چې په هغو کې ستاسو لپاره تودوخه ده.
- الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿وَمِنْ أَصْوَافِهَا وَأَوْبَارِهَا وَأَشْعَارِهَا أَثَاثاً وَمَتَاعاً إِلَى حِينٍ﴾ (النحل: ٨٠) يعنې د حيواناتو له وړيو او ويښتانو څخه يې د کور او ګټې اخستنې سامان تر يوه تاکلي وخته پورې درته جوړ کړل.
- الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ (المدثر: ٤) يعنې جامې مو پاکې وساتئ.
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**أما كان هذا يجد ماءً يغسل به ثوبه**» يعنې آيا دې سړي او به پيدا نکړې چې جامې يې وينځلې واى. (دابوداوود په روايت له جابر بن عبدالله څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**أصلحوا ثيابكم**» خپلې جامې مو اصلاح او پاک کړئ. (داحمد او ابو داوود په روايت له قيس بن بشر تغلبي څخه)
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**إن الله جميلٌ يحبُّ الجمال**» يعنې خدای(ج) جميل دی ښکلا او ښايست خوښوي. (دمسلم په روايت له ابن مسعود څخه).

**۲۸- د کورنۍ د جوړولو او د بدني، روحي او جنسي سوکالۍ او همدارنګه د بشريت د ساتنې او دوام لپاره، واده ضرور ده نو لدې کبله اسلام هغه تشويقوي او له رهبانيت څخه يې منع کړيده د بدني او مادي شرطونو او امکاناتو د بشپړوالي په صورت کې ځوانان وادونو ته هڅوي.**

- الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿وَمِنْ آيَاتِهِ أَنْ خَلَقَ لَكُمْ مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَزْوَاجاً لِتَسْكُنُوا إِلَيْهَا وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَوَدَّةً وَرَحْمَةً﴾ (الروم: ۲۱) يعنې د خدای(ج) د قدرت له نښو څخه يوه داده چې تاسو ته يې د خپل له جنس څخه جوړه پيدا کړه ترڅو په هغو سره هوسايي او داډ پيدا کړئ او همدارنګه يې

ستاسو ترمنځ مهرباني او مينه راپيدا کړيده.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**النکاحُ من سنَّتي فمن لم يعمل بسنَّتي فليس منّي**» يعنې واده زما له سنتو څخه دئ، چاچې زما په سنتو عمل ونکړ، زما له جملې څخه ندئ. (دابن ماجه په روايت له عايشې څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**وأتزوّج النساء فمن رغب عن سنَّتي فليس مني**» يعنې زه ښځې په نکاح کوم، څوک چې زما له سنتو څخه مخ واړوي، زمونږ له جملې څخه ندئ. (دمسلم په روايت له انس څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**يا معشر الشباب! من استطاع منکم الباءة فليتزوَّج**» يعنې اى ځوانانو هرڅوک له تاسو څخه چې قدرت ولري بايد ازدواج وکړي. (دابن ماجه په روايت له عبدالله بن مسعود څخه).
- «**نهى رسول الله ﷺ عن التبتل**» يعنې رسول الله ﷺ له کناره گيرۍ او گوشه نشينۍ څخه منع کړيده. (دنسائي په روايت له عايشې او سمرة بن جندب څخه)
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «لم أُومر بالرَهبانيَّة» يعنې رهبانيت مه کوئ. (ددارمي په روايت له سعد بن ابى وقاص څخه).

## ۲۹- داسلامي ټولنې له دندو څخه يوه داده چې مجردان سره واده کړي او واده نه کول دلوى فساد طريقه ده.

- الله تعالى(ج) فرمايي: ﴿وَأَنْكِحُوا الأيامىٰ منْكُمْ والصالحينَ منْ عبادِكُمْ وَإمائكُمْ﴾ (النور: ۳۲) يعنې او په نکاح ورکړئ بې ميړونو ښځې له خپل قوم نه او صالح بنده گان او وينځې خپلې.
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**إذا جاءكم من ترضَوْن دينهُ وأمانتهُ فزوِّجوه! إن لاتفعلوا تکن فتنةٌ في الأرض وفسادٌ کبير**» يعنې که يو څوک تاسو ته راشي چې له دين او امانت دارۍ څخه يې راضي کيږئ نو هغه ته په نکاح ورکړئ او که تاسو دا کار ونکړئ نو دځمکې پر مخ به لوى فساد سروو هي. (دابن ماجه په روايت

له ابی هریره څخه)۰

**۳۰- د کامیاب واده لپاره اسلام ضمانتونه توصیه کړی او امر کوي چې دینداره خلکو ته ترجیح ورکړی، تشویقوي تر څو مینه ناکه او زیږوونکې ښځه نکاح کړی، هغې ښځې ته چې ریبار ورلیږي، کتلو ته یې اجازه ورکوي او د عمر نژدیوالی تشویقوي.**

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**فاظفر بذات الدين**» یعنې د دینداره نارینه وؤ او ښځو په وادونو کې کوښښ وکړئ. (متفق علیه له ابی هریره څخه)۰
- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**تزوَّجوا الوَدُود الوَلُود**» یعنې مینه ناکې او زیږینده ښځې په نکاح واخلی. (دنسائی او ابوداوود په روایت له معقل بن یسار څخه)۰
- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**إذا خَطَبَ أحدُكم المرأة فان استطاع أن ينظر منها إلى مايدعوه إلىٰ نكاحها فليفعل**» یعنې که څوک له تاسو څخه غواړی چې چا سره واده وکړی، که غواړی پدې اړوند هغې ته وګوري نو باید دا کار وکړي. (دابوداوود په روایت له جابر څخه)
- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**أنظر إليها فذلك أحرى أن يؤدم بينكما**» یعنې هغې ته وګوره (هغې ښځې ته چې غواړی واده ورسره وکړی) ځکه چې دا کار د ګډ ژوند د دوام لپاره ښه او بهتره دی. (د ترمذی نسائی او ابن ماجه په روایت له مغیره بن شعبه څخه)
- «**خطب أبوبكر وعمر رضي الله عنهما فاطمة (بنت النبي ﷺ) فقال: إنها صغيرة. فخطبها على فزوجها منه**» یعنې حضرت ابوبکر او عمر (رض) حضرت رسول الله ﷺ ته د بی بی فاطمی لپاره ریباری ولیږله، پیغمبر ﷺ وفرمایل هغه وړه ده، بیا حضرت علی کرم الله وجهه دا کار وکړ، نو حضرت پیغمبر ﷺ هغه ورته په نکاح کړه. (دنسائی په روایت له بریدة څخه)

**۳۱- اسلام د نسل د روغتیا ضمانت کوی او امر کوی تر څو ښې جوړی ځانته**

وتپاکی.

● حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**تخيَّروا لِنُطَفِكُم**» یعنې دخپل نسل دښه والي لپاره ښې جوړی وټاکی. (دابن ماجه، دارقطني او حاکم په روایت له بي بي عایشې څخه)

**۳۲- اسلام جنسي فعالیت او خوند یوازې دواده په چوکاټ کې جایز بولي. بیرون له واده څخه هر ډول خوند اخستنې ته تیرئ او ناجایز وایي.**

● الله تعالی(ج) فرمایی: ﴿والَّذينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حافِظُونَ؛ إِلاَّ علىٰ أَزْواجِهِمْ أَوْ ما مَلَكَتْ أَيْمانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ؛ فَمَنِ ابْتَغىٰ وَراءَ ذٰلِكَ فَأُولٰئِكَ هُمُ العَادُونَ﴾ (المؤمنون: ۵-۷) یعنې مسلمان هغه دئ چې خپل د شرم ځایونه خوندی ساتي مگر له خپلو جوړو یعنې میرمنو او وینځو څخه، پدې صورت کې هغوی ملامت ندي، هرڅوک چې پر ته لدې وغواړي نو هغوی تیري کوونکي دي.

**۳۳- اسلام په داسې حال کې چې جنسي خوند او لذت په واده پورې اړوند او منحصر بولي، هغه عملي بولي چې ښځه او میړه په هغې سره د اجر او ثواب وړ گرځي او وصیت کوي چې مخکې له جماع یا جنسي نژدې والي څخه باید ملاطفت، نرمي مستي کول وشي او را پارول تحریک شي او امر کوي چې هر یو ستاسو میړه وي که ښځه د بل د شهوت دراپاریدلو پورې انتظار وباسي.**

● حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**وفي بُضعِ أحدكم صدقةٌ!**» **قالوا: یارسول الله أیأتي أحدنا شهوته ویکون له فیها أجرٌ؟ قال: «أرأیتم لو وضعها في الحرام أکان علیه وزرٌ؟ فکذلک إذا وضعها في الحلال کان لهُ أجرٌ»** یعنې ستاسو د هریوه په جماع کولو کې صدقه ده. اصحابو وویل چې اې د خدای پیغمبره! که یو څوک خپل شهوت رفع کړي په هغې کې صدقه شته؟ ویې فرمایل: تاسو څه وایئ که څوک هغه په حرامه لیار کې مصرف کړي آیا هغه ته به گناه وي؟ او که هغه په حلال کې مصرفوي، نو هغه ته ثواب او اجر شته. (دمسلم په روایت له ابوذر

غوره ده.

خو که څوک لدې کار څخه سرغړونه کوي او له عاقبت سنجۍ پرته په مادي خوندونو کې ډوبيږي په ژوند کې يې دروغتيا مخالفه لياره خپله کړه، دمخدره موادو، دخانياتو او نشه ايزو موادو په گرداب کې ډوب شو، په چاغوونکو خوړو کې يې زياتۍ وکړ او شديدو نفسي انفعالاتو ته يې تن کيښود، دنفس په راحت کې يې زياتۍ وکړ او دچاپيريال په ککړوالي کې يې پراخه ونډه واخسته نو هيڅ دحيرانتيا ځای ندۍ چې موازنه له منځه ځي او بدن يې دخپلو اعمالو مطابق په ډول ډول ناروغيو اخته کيږي. او دخدای(ج) دآيت مطابق ﴿ وما ظَلَمَهُمُ اللّٰه وَلكِنْ كانوا أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمون ﴾ په هغو ظلم ندۍ شوۍ بلکې هغو پخپله پر ځان ظلم کړيدۍ.

په نړۍ کې دعلم او تکنالوژۍ دحيرانوونکي او چټک پرمختگ سره داسې گمان او انتظار کيده چې د ناروغيو دژر تشخيص او ښې معالجې پر بنسټ بايد ناروغۍ ورځ په ورځ کمې شوې او له منځه تللې وای او بډای هيوادونه بايد دروغتيا له نعمت او عافيت څخه زيات برخه من شوي وای. خو په خواشينۍ سره چې داسې ونشو بلکې يوې ډول ناروغۍ دبلې ځای ونيو او دناروغۍ لور دعافيت او دروغتيا د وړو لوکولو ته دوام ورکړ. احصائيې ښئي چې دروغتيا مخالف-دژوند تگ لارې په پرمختللې او متمدنې نړۍ کې ددې ناروغيو دپيدا ښت لمړۍ درجه مسئول دي. ددې ناروغيو څخه دژغورنې هيڅ ليار نشته مگر داچې ددې ناوړه تگ لارو او سلوک څخه ډډه وشي او هغه لياري چارې غوره شي چې دژوندانه لپاره گټورې او مناسبې وي.

دلمړنيو روغتيايي مراقبتونو تگ لار دخلکو دروغتيايي وضعې دښه والي لپاره دلارښوونې مهمه وسيله ده او هغه عبارت ده دروغتيايي معلوماتو څخه. زمونږ مقصد لدې معلوماتو څخه خلکو ته دروغتيايي رسالو رسول دي چې هغوی بيا په خپل وار هغه معلومات نورو ته وررسوي لکه ښوونکۍ په ښوونځي کې شاگردانو ته، دقبيلې مشر خپلې قبيلې ته، ښځه په کور کې خپلو ماشومانو او کورنۍ ته، ارباب په خپلو مربوطاتو کې، خطيب او امام په جومات کې، کشيش او راهب پخپله کليسا کې... خو تر هر څه

څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**لا يقعنَّ أحدكم على امرأته كما يقعُ البعيرُ وليكن بينهما رسولٌ» قيل: وما الرسول؟ قال: القُبلة والكلامُ**» يعنې: له تاسو څخه څوک بايد له خپلې ښځې سره داسې جماع ونکړي لکه اوښ يې چې کوي. بايد چې د ښځې او ميړه ترمنځ وسيله او رسول موجود وي. پوښتنه وشوه چې دا رسول او وسيله څه شئ ده؟ ويې فرمايل: ښکلول او خبرې کول. (د ديلمی په روايت په الفردوس کې)

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**إذا جامع أحدكُم امرأته فَليصدُقها، فإن قضىٰ حاجتهُ قبل أن تقضي حاجتها فلا يُعجلّها حتىّٰ تقضي حاجتها**» يعنې: څوک له تاسو څخه چې د خپلې ښځې سره جنسي نژديوالئ کوي بايد چې مينه او ملاطفت وکړي او مهر وکړي پدې ډول چې که چيرې د ميړه حاجت (شهوت) مخکې روا کيږي نو بايد چې بيړه ونکړي تر څو چې د ښځې حاجت يې هم روا شي. (په مصنف کې د ابويعلی او صنعانی په روايت له انس څخه)

- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذي عَلَيْهِنَّ بالمَعْرُوف﴾ (البقره:۲۲۸) يعنې د ښځو هم حق دئ په ميړونه لکه همغسې چې ميړونه په ښځو حق لري.

## ۳۴- اسلام جماع کول د حيض په وخت کې حرام بولي او هر جنسي حالت مباح بولي پدې شرط چې په مخصوص ځای (فرج) کې وي.

- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿فَاعْتَزِلُوا النساءَ في المَحيض﴾ (البقره:۲۲۲) يعنې د حيض په وخت کې له ښځو سره له جَماع کولو څخه ډډه وکړی.

- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿نساؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنّىٰ شئْتُمْ﴾ (البقره:۲۲۳) يعنې ستاسو ښځې ستاسو د کرنې د ځمکو په څير دي تاسو چې په هر ډول غواړی همغسې کرنه وکړی.

● حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**لا تأتو النساء فی أدبارهنّ**» يعنې دښځو سره په مقعد کې جماع (لواطت) مه کوی. (دشافعي په روايت له خزيمه بن ثابت او قواه او دابن حبان په تصحيح)

**۳۵- اسلام سره ددې چې زېږول دواده اساسي مقصد بولي او اولاد الهی نعمت شمیری خو بیا هم دکورنی تنظیمولو ته اجازه ورکوي او د دواړو خواوو يعنې ميړه او ښځې په موافقې سره داميندواری څخه مخنيوئ کولو ته اجازه ورکوي او په مقابل کې کوښښ کوي ترڅو نه زېږنده ښځه معالجه کړي چې داولاد خاونده شي.**

● الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿والله جعل لكم من أنفسكم أزواجاً وجعل لكم من أزواجكم بنين وحفدة ورزقكم من الطيبات، أفبالباطل يؤمنون وبنعمة الله هم يكفرون﴾ (النحل:۷۲) ستاسو له خپل جنس څخه يې جوړې درته پيدا کړې، له ښځو څخه يې درته اولادونه او لمسي پيدا کړل، له پاکو څيزونو څخه يې درته روزي درکړه، آيا بيا هم تاسو په باطل ايمان راوړی او دخدای له نعمتونو څخه کافر کيږی؟

● حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**تزوجوا الودود الولود**» يعنې دمينه گرکو او زيږنده ښځو سره وادونه وکړی. (دنسائی او ابوداوود په روايت له معقل بن يسار څخه)

● الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿وزكريا إذ نادى ربه: رب لا تذرني فرداً وأنت خير الوارثين﴾ (الانبيأ:۸۹) او زکريا په ياد راولی چې خپل رب ته يې دعا وکړه چې ما يوازی مه پريږده او ته بهترين وارث يې.

● له جابر څخه روايت دئ چې دحضرت رسول الله ﷺ په وخت کې به يې عزل (دمنی تويول له فرج څخه بهر) کاوه او قرآن نازليده او وايي چې داخبره پيغمبر ﷺ ته ورسيده هغه ﷺ مونږ لدې کاره څخه منع نکړو. (دبخاری، مسلم نسائی او ترمذی په روايت له جابر څخه).

- له جابر څخه بل روایت دئ چې یو څوک حضرت، پیغمبر ﷺ ته راغئ او ویې ویل: زه یوه وینځه لرم چې زمونږ خدمت کوي او اوبه راکوي او زه ورسره جماع هم کوم خونه غواړم چې هغه امیندواره شي. ویې فرمایل که غواړې عزل وکړه، ځکه هغه څه چې په تقدیر کې وي هغه راتلونکی دئ. (دمسلم، ابوداوود، بیهقی او احمد په روایت له جابر څخه).

## ۳۶- اسلام امر کوي چې د ښځې او میړه ترمنځ اړیکی باید د تراحم، مینې او مشورې پر بنسټ وي چې دا کار د میړه او ښځې او همدارنګه د کورنۍ د نورو غړو د روحي روغتیا ضامن ده.

- الله تعالی (ج) فرمایي: ﴿وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَوَدَّةً وَرَحْمَةً﴾ (الروم: ۲۱) یعنې ستاسو ښځې او میړه ترمنځ یې مینه پیدا کړیده.
- الله تعالی (ج) فرمایي: ﴿وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ﴾ (النساء: ۱۹) یعنې د خپلو ښځو سره په نیکۍ سره ژوند وکړئ.
- الله تعالی (ج) فرمایي: ﴿وَائْتَمِرُوا بَيْنَكُمْ بِمَعْرُوفٍ﴾ (الطلاق: ٦) یعنې پخپلو کې په نیکۍ سره مشوره وکړئ.
- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**خَيرُكُم خَيرُكُم لِأهله**» یعنې ستاسو څخه غوره او بهترین هغه دئ چې په خپله کورنۍ کې ښه او غوره وي. (دابن ماجه په روایت له ابن عباس او د ترمذی په روایت له بي بي عایشې څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**لاتحمِلوا النساءَ على مايكْرَهنَ**» یعنې هغه څه چې د ښځو بد ځنې راځي هغو ته یې مه مجبوروئ. (د مصنف عبدالرزاق په روایت له عکرمه څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**خيارُكم خيارُكم لِنسائهم**» یعنې ستاسو څخه ښه هغه څوک دئ چې له خپلې ښځې سره ښه کوي. (د ترمذی په روایت له ابی هریره څخه او وایی چې حسن حدیث دئ).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «استوصوا بالنساء خيراً» يعني خپلو ښځو ته په نيكۍ سره وصيت وكړئ. (متفق عليه له ابي هريره څخه).

## ۳۷- اسلام امر كوي چې له فحشا لكه زنا او لواطت څخه ليرې اوسئ.

- الله تعالى (ج) فرمايي: ﴿ وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ ﴾ (الانعام: ۱۵۱) يعني ښكاره او پټو فواحشو ته مه نژدې كيږئ.
- الله تعالى (ج) فرمايي: ﴿ وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَىٰ إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً ﴾ (الاسراء: ۳۲) يعني زنا ته مه نژدې كيږئ، ځكه چې هغه فحشاء ده.
- الله تعالى (ج) فرمايي: ﴿ إِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِنْ دُونِ النِّسَاءِ بَلْ أَنْتُمْ قَوْمٌ مُسْرِفُونَ ﴾ (الاعراف: ۸۱) يعني تاسو د شهوت د رفع كولو لپاره ځئ د نارينه وو په لور نه د ښځو په لور، نو تاسو تيري كوونكئ قوم ياست.
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «إن أخوف ما أخاف على أمتي عمل قوم لوط» خطرناكترين څيز چې پخپل اُمت ويرېږم هغه دلوط د قوم عمل دئ. (دابن ماجه او بيهقي په روايت له جابر بن عبدالله څخه).

## ۳۸- ښځې تر نارينه وو زياتې ناروغيږي ځكه چې په داسې څيزونو اخته كيږي چې بدن يې كمزورى كوي نو لدې كبله اسلام وصيت كوي چې هغوته دې پاملرنه وشي او دهغو دحق په وركولو كې تشديد كوي. بشپړه روغتيا دهغوى حق ده او لازمه ده چې داكار وشي.

- الله تعالى (ج) فرمايي: ﴿ حَمَلَتْهُ أُمُّهُ وَهْناً عَلَىٰ وَهْنٍ ﴾ (لقمان: ۱۴) يعني موريې هغه كمزورى په كمزورى حمل كړيدئ.
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «اللهمّ إنّي أحرّج حقّ الضعيفين: اليتيم والمرأة» يعني اى ربه زه ددوه كمزورو له حق څخه په تنگ يم يو ښځه او بل يتيم. (دنسائى په روايت له ابى شريح خويلد بن عمرو الخزاعى څخه. دا حسن حديث دئ).

● حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «استوصوا بالنساء خير» يعني ښځو ته په نيکۍ وصيت وکړئ (متفق عليه له ابوهريره څخه)

**۳۹- اسلام په هر علت چې وي د ښځې د بدن زشت کولو ته اجازه نه ورکوي نو ځکه د هغه له بدن څخه د کوم څيز پريکول د ختنې په نامه د خلق الله تغير دئ او د هغه فاعل ملعون دئ. دين دې کار ته اجازه نه ورکوي او مخصوصاً چې بيا ښځه په ډول ډول نارو غيو اخته کيږي.**

● الله تعالى (ج) فرمايي: ﴿وإنْ يَدْعُونَ إلاَّ شَيْطاناً مَرِيداً، لَعَنَهُ اللَّهُ، وَقَالَ لأَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبادِكَ نَصِيباً مَفْرُوضاً، ولأُضِلَّنَّهُمْ ولأُمَنِّيَنَّهُمْ ولأمُرَنَّهُمْ فَلَيُبَتِّكُنَّ آذانَ الأنْعامِ وَ لآمُرَنَّهُمْ فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ اللّه﴾ (النساء: ۱۱۷-۱۱۹) يعني مشرکان عبادت نه کوی مگر د شيطان رټل شوي. لعنت د خدای دې وی پر هغه او ویل شيطان چې ستا له بنده گانو څخه به يوه تاکلی برخه اخلم او بی لاری کوم به يې، هغوی به په باطلو هيلو کې واچوم او امر به وکړم چې سوري کړی د حيواناتو غوږونه او امر به وکړم چې خدايي خلقت ته بدلون ورکړی.

● حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «لعن الله ... المغيّرات خلق الله» يعني لعنت د خدای پر هغو ښځو دئ چې خلق الله ته تغير ورکوی. (متفق عليه له ابن مسعود څخه).

**۴۰- اسلام له تيو څخه ماشوم ته شيدی ورکول تشويقوی يعني د ماشوم روغتيا په خوړو سره ښه خوندي کوي. د مور د روغتيا په منظور د اميندواريو ترمنځ فاصله توصيه کوي او سربيره پر هغو د مور او ماشوم د روغتيا ساتنې په منظور د اميندواريو په تنظيمولو کې هيڅ ممانعت نه کوي.**

● الله تعالى (ج) فرمايي: ﴿وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كامِلَيْنِ﴾ (البقره: ۲۳۳) يعني ميندې دې ماشومانو ته تر دوه کلونو پورې شيدې ورکړي.

- اللّه تعالی (ج) فرمایی: ﴿ وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ ﴾ (القمان: ١٤) او له شیدو څخه د ماشوم بیلول پس له دوه وو کلونو دئ.

- حضرت رسول اللّه ﷺ فرمایی: «**اعزِل عنها إن شئت**» یعنې که غواړې عزل (د منی تویول بیرون له فرج څخه) وکړه. (د مسلم، ابوداوود، بیهقی او احمد په روایت له جابر څخه).

**٤١- جنین په اسلام کې د ژوند حق لري. د هغه وژنه په هیڅ ډول جواز نلري. حتی که مور د کوم جرم په اساس په اعدام محکوم شوې وي د حمل په لرلو سره حکم په تعویق اچول کیږي تر څو ولادت وکړي او حتی چې هغه ماشوم ته شیدې ورکړي.**

- اللّه تعالی (ج) فرمایی: ﴿ مَنْ قَتَل نَفْساً بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسادٍ فِي الأَرْضِ فَكَأَنَّما قَتَل النَّاسَ جَمِيعاً ﴾ (المائده: ٣٢) هر څوک چې وو وژني بل بی له عوضه او پرته له فساده په ځمکه کې، داسې ده لکه چې ټول خلک یې وژلي دي.

- قال ﷺ في شأن الغامدية لوليها: «**احسن إليها فاذا وضعت فاتني**» یعنې حضرت رسول اللّه ﷺ د غامدیه په هکله د هغه ولي ته داسې وفرمایل: هغې سره نیکي وکړې چې حمل یې خلاص شي او بیا یې ما ته راولې. (د مسلم په روایت له عبداللّه بن بریدة څخه).

**٤٢- ماشوم متوب په اسلام کښې د خوښیو، نیکمرغیو او محبت د نیا ده چې خدای (ج) په هغې سره سوګند یادوي د هغو په هکله فرمایي چې هغوی دسترګو درڼايي زیرې او د دنیا ښکلا دي.**

- اللّه تعالی (ج) فرمایی: ﴿ لا أُقْسِمُ بِهذا البَلَدِ وَ أَنْتَ حِلٌّ بِهذا البَلَدِ وَوَالِدٍ وَمَا وَلَدَ ﴾ (البلد: ١ - ٣) یعنې قسم یادوم پدې ښار یعنې مکې مکرمې چې ته به حلال شی پدی ښار او قسم یادوم په زیږوونکي او په هر څه چې یې

زیږولي یعنې اولاد.

- الله تعالی(ج) فرمایي: ﴿ یازکریَّا إنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلامٍ﴾ (مریم: ۷) یعنې ای ذکریا مونږ تا ته دزوی زیریْ درکوو.
- الله تعـالی(ج) فـرمـایی: ﴿ فَبَشَّرْنَا ها بإسْحق وَمِنْ وَرَاء إسْحقَ يَعْقُوبَ ﴾ (هود: ۷۱) یعنې مونږ دابراهیم دښځې اسحق ته او وروسته له اسحق څخه یعقوب ته زیرئ ورکړ.
- الله تعـالی(ج) فرمـایی: ﴿ رَبَّنا هَبْ لَنا مِنْ أَزْواجِنَا وَذُرِّيَّاتنا قُـرَّةَ أَعْيُنٍ ﴾ (الفرقان: ۷٤) یعنې ای زمـونږ ربه راوبخښـه مـونږ ته دسـترګـو رڼا یې زمونږ دښځو او زمونږ دبچیانو.
- الله تعالی(ج) فرمایي: ﴿ المالُ وَالْبَنُونَ زِينَةُ الحَياةِ الدُّنْيا ﴾ (الکهف ٤٦) یعنې مال او زامن ددنیوي ژوندانه ښکلا دي.

## ٤٣- دماشوم روغتیا رحمت او لازمی ده، هغه ضایع کیدل یعنې دروغتیا له منځه تګ یې کبیره ګناه ده.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**لیس منَّا من لم یرحم صغیرنا**» یعنې زمونږ څخه ندئ هغه څوک چې زمونږ په ماشومانو رحم ونکړي. (دابو داوود په روایت له عمرو بن شعیب څخه دنیکه په خوله یې داحسن حدیث دئ)
- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**کفی بالمرء إثماً ان یضیّع من یقوت**» یوه کس ته همدا ګناه بس ده چې هغه کس چې نفقه یې ورپه غاړې ده ضایع کړي (صحیح حدیث دابوداؤد په روایت له عبدالله بن عمرو څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**والرجُلُ راعٍ في اهله ومسؤولٌ عن رعیته، والمراة راعیةٌ في بیت زوجها وولده و مسؤولةٌ عن رعیّتها**» یعنې نارینه په کور کې سرپرست دئ او دخپل عیال او لاس لاندې کسانو مسئولیت ورپه غاړه دئ او ښځه دمیړه په کور کې ساتونکې ده او دلاس لاندی کسانو مسئوله ده.

(متفق علیه له عبدالله ابن عمر څخه)

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**من كانت لهُ أُنثیٰ فلم یَئِدها ولم یُهنها ولم یُؤثر ولدهُ (یعني الذكور) علیها ادخله الله الجنة**» څوک چې لور ولري او هغه ژوندی ښخه نکړي او بدورد هم ورته ونه وایي او خپل زوی هم تر هغې لوړ ونه بولي، خدای (ج) هغه جنت ته ورننه باسي. (دابو داوود په روایت له ابن عباس څخه)

**٤٤- د ماشومانو د روغتیایي ساتنې څخه یو هم د وژونکو ناروغیو څخه مخنیوئ یا وقایه ده. پدې کار کې تنبلي او بې غوري د هغوی د ول ضایع کول دي حتیٰ چې وژل یې دي، او د اخرگند زیان او ضرر حسابیږي.**

- الله تعالیٰ (ج) فرمایي: ﴿قَدْ خَسِرَ الَّذِين قَتَلُوا أَوْلادَهُمْ سَفَهاً بِغَيْرِ عِلْمٍ﴾ (الانعام: ١٤٠) یعنې په تحقیق سره چې زیانمن شول هغه کسان چې خپل اولاد ونه یې په ناپوهۍ سره ووژل.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**كفى بالمرء إثماً أن يضيع من يقوت**» یعنې یوه کس ته همدا گناه بس ده چې خپل نفقه خور ضایع کړي. (صحیح حدیث دی دابو داؤد او نورو په روایت له عبدالله بن عمرو څخه).

**٤٥- معیوبین د ټولنې کمزوره او ضعیف جزء دي، جواز نلري چې د هغوی رواني یا روحي روغتیا استهزاء او مسخره شي. د هغو سره مرسته په بیلابیلو لارو چارو لازم ده تر څو روغ، او د ټولنې صالح غړي شي.**

- الله تعالیٰ (ج) فرمایي: ﴿لا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِنْ قَوْمٍ﴾ (الحجرات ١١) یو قوم دې په بل استهزاء او تمسخر نه کوي.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**وتهدي الأعمىٰ**» یعنې ړندو کسانو ته لارښوونه وکړې. (داحمد په روایت له ابی ذر څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**وتُسمِعُ الأصمَّ والأبكمَ حتّى يفقه**» کڼو او گونگو کسانو ته واوروې تر څو پوه شي. (داحمد په روایت له ابی ذر څخه).

● حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**وبصرُك الرجُل الرديء البصر لك صدقة**» د کم بينا کسانو لارښوونه درته صدقه ده. (د ترمذی او بخاری په روايت په ادب المفرد کې او د ابن حبان په روايت له ابی ذر څخه).

● حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**وترفعُ بشدَّةِ ذِراعَيْك مع الضعيف**» يعني د بې وزلو سره د مرستې لپاره لستوڼي بروهه. (د احمد په روايت له ابی ذر څخه)،

● حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**تُعينُ صانعاً أو تصنَعُ لِأخرق**» يعني کارگر او جوړوونکی سره مرسته وکړه يا څشئ چې او بې بايد ځيرې نه شي. (د بخاری په روايت له ابی ذر څخه).

**٤٦- د مسلمان لپاره جواز نلري چې هغه ليارو ته کې چې په خطر او هلاکت ختميږي لکه ځان او کورني مخامخ کول له اور سره، يا د خوړو مخامخ کول له چټليو سره او يا هم ځان مخامخ کول له د ول د ول بلاگانو او مصيبتونو سره لکه ترافيکي پيښې.**

● الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿وَلا تَقْتُلوا أَنْفُسَكُمْ﴾ (النسأ: ٢٩) يعني خپل ځانونه مه وژنی.

● الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿وَلا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَي التَهْلُكَةِ﴾ (البقره: ١٩٥) يعني ځان په خپل لاس په هلاکت کې مه اچوی.

● حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**إذا عرَّستم فاجتنبوا الطريق فإنَّها طُرُقُ الدوابِّ ومأْوىٰ الهوامِّ باللَّيل**» يعني د شپې د خوب کولو څخه په سړک کې ډډه وکړی ځکه چې هغه په شپه کې د حيواناتو او حشراتو ليار ده. (د مسلم په روايت له ابو هريره څخه).

● حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**إذا اوی أحدُكم إلىٰ فراشه فلينفُض فراشهُ بداخلة إزاره، فإنهُ لا يدري ما خلفهُ عليه**» يعني کله چې څوک له تاسو څخه پخپل بستر کې بيديږی بايد چې هغه ښه وغوړوی ځکه چې نه پوهيږی چې

ستاسو په غیاب کې به څه څه شیان هلته ول. (متفق علیه له ابی هریره څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**إنَّ هَذِهِ النار عـدُوٌ لكم فـإذا نِمْتم فـأطفِئوها عنكم**» یعنې اور دا اور دښمن دئ، کله چې بیدیږئ، هغه مړ کړئ. (متفق علیه له ابی موسیٰ څخه).
- حضرت رسول الله فرمایی: «**أَطفِئوا المصابيح إذا رقَدْتم، وغلّقوا الأبواب، وأوكوا الأسقية، وخمّروا (غطّوا) الطعام والشراب**» یعنې کله چې بیدیږئ، څراغ مړ کړئ، دروازې وتړئ، دخوړو او اوبو لوښي وپوښئ. (دبخاري په روایت له جابر څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**لا ينبغي لِمسلِمٍ أن يُذِلَّ نفسه» قالوا: وكيف يذل نفسه؟ قال: «يتعرَّض من البلاءِ لما لا يُطيقهُ**» یعنې مسلمان ته نه ښایي چې ځان ذلیل کړي. پوښتنه وشوه چې یو څوک څرنګه ځان ذلیلوی؟ ویې فرمایل: خپل ځان د هغه مصیبت سره مخامخ کوی چې توان یې نلري. (دابن ماجه او احمد په روایت له حذیفه څخه).

**۴۷- په سفر کې باید روغتیایي احتیاط وشي، په هغې کې نظافت او لازمه توښه په کار ده چې هغه له نارو غیو څخه وساتي. له ځانته تلنې څخه منع شویده او پکار ده چې ژر بیرته، راستون شي ځکه په هغې کې تکلیف دئ.**

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**السفرُ قطعةٌ من العذاب، يمنعُ احدكم نومهُ وطعامهُ و شرابهُ، فإذا قضىٰ أحدكُم نهمتهُ من سفره، فليُعجِّل الرجعة إلىٰ أهله**» یعنې سفر داور یوه ټوټه ده چې د مسافر خوب، خوراک او څښاک منع کوي، همدا چې دچا ضرورت په سفر کې روا شو نو باید ژر خپلې کورنی ته راستون شي. (متفق علیه له ابی هریره څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**...فأصلِحُوا رِحالَكُم**» یعنې د سفر وسایل مو اصلاح کړئ. (دابوداوود او احمد په روایت له ابی درداء څخه).

دمخه ددې رسالو برابرول په داسې عام ساده او واضح ډول ډیر مهم او ضرور دي چې خلکو ته قناعت ورکړای شي او عملي کول یې آسانه وي. دخدای(ج) احسان پر مونږ او خلکو دادئ چې ددې سیمې اوسیدونکي ددین دعوت کوونکو ته احترام لري او خبرې یې دزړه په غوږونو اوري. دیني لارښوونې چې دژوندانه کړو وړو او تګ لارې سره اړیکې لري ډیرې زیاتې او عملي دي لکه په خوراک او څښاک کې زیاتئ یا اسراف نه کول، دخلکو دناوړه کړو وړو له امله په وچه او اوبو کې دفساد راپیدا کیدو څخه دمخ نیوئ په غرض ځنې بندیزونه لګول، دقوي یا غښتلي مسلمان غوره والئ پر ضعیف یا کمزوري مسلمان باندې... چا ته له ضرر رسولو څخه منع کول او دضرر جزا په ضرر نه ورکول، ځان او نورو ته اذیت او آزار نه رسول او نور... اسلامي لارښوونې او توجیهات خورا زیات دي چې انسان دژوند اصلي لیارې ته رابولي او هر ګام یې صحیح کوي. تر ټولو مهم ځیز چې دانسان انسانیت ته رښتینولي بخښي دادئ چې پخپله اراده او عزم کې آزاد وي، هغه به هله پخپله مناسبه پریکړه کې بریالئ وي چې تر څیړنې او بحث لاندې مسئله ورته په بشپړ ډول څرګنده وي، دهغه ښیګڼې او نیمګړتیاوې ورته روښانه او ګټې او ضررونه یې ورته څرګندوي دا ددیني علماؤ دنده او مسئولیت دئ چې دې ډول کسانو ته لازم معلومات او لارښوونې په ساده او واضح کلمو په تفصیل سره بیان کړي.

لدې کبله دنړیوال روغتیایي سازمان دختیځې مدیترانې سیمه ایز دفتر، دطبي علومو اسلامي سازمان او داسلامي تمدن دڅیړنو له شاهي انجمن څخه دا غوښتنه وکړه چې پدې اړوند یو کنفرانس راوغوښتل شي ترڅو په هغې کې دفقیهو یوه ډله او دموضوع متخصصین برخه واخلي. دهغو دناستې او بحثونو په نتیجه کې داسې مفصل علمي مواد برابر شي ترڅو دژوندانه هغه غوره ایجابي تګ لار چې دین پرې امر کوي راڅرګنده کړي چې پیروانو ته یې بهبودي او دروغتیا ساتنه ورپه برخه کړي او هم دژوند ناوړه او سلبي لیار او سلوک ورپه ګوته کړي چې دین له هغه څخه منع کړې، او ددې کول له هغو نه، انسان په ناروغیو له اخته کیدو څخه ژغوري.

زمونږ ورور استاد ډاکټر هواري اساسي کار په څو پاڼو کې ترتیب او دڅینو لړنیو

- الله تعالیٰ (ج) فرمايي: ﴿ وَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوىٰ ﴾ (البقره: ۱۹۷) په سفر کې له ځان سره توښه واخلئ او ډېره ښه توښه تقویٰ ده.

- «نهى رسول الله ﷺ عن الوحدة: أن يبيت الرُجُلُ وحدهُ أو يُسافرُ وحدهُ» يعنې رسول الله ﷺ يوازيتوب څخه منع کړيده. له يوازې بيديدو او يوازې په سفر تلو څخه يې منع کړې (دامام احمد په روايت له ابن عمر څخه او صحيح سند په شرط البخاري کې).

**۴۸ - خوب دخدای (ج) دلطف او مهربانۍ نښانه ده او اسلام امر کوي چې لدې نعمت څخه گټه واخلئ په خاصه توگه دشپې لخوا تر څو جسم او روح دواړه استراحت او آرام وکړي.**

- الله تعالیٰ (ج) فرمايي: ﴿ جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ ﴾ (يونس: ۶۷) يعنې شپه يې تاسو ته پيدا کړه چې پکښې استراحت وکړۍ.

- الله تعالیٰ (ج) فرمايي: ﴿ وَمِنْ آيَاتِهِ مَنَامُكُمْ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَابْتِغَاؤُكُمْ مِنْ فَضْلِهِ ﴾ (الروم: ۲۳) دخدای (ج) دقدرت له نښانو څخه ستاسو خوب په شپه او ورځ کې دئ، غوښتنه دهغه تعالیٰ له فضل څخه ده.

- الله تعالیٰ (ج) فرمايي: ﴿ جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِبَاساً وَالنَّوْمَ سُبَاتاً ﴾ (الفرقان: ۴۷) يعنې تاسو ته يې شپه جامې او خوب يې راحت پيدا کړ.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «... **ونم، فان لجسدک عليک حقا**» يعنې بيده شه ځکه چې جسم دې پر تا حق لري. (دمسلم په روايت له عبدالله بن عمرو څخه).

**۴۹ - اسلام په کورنۍ او ټولنه کې روحي روغتيا داسلامي تگ لياري پيروي بولي او داهغه تگ لار ده چې غالمغال او جنگ وجدال پکښې نشته دخدای (ج) قضا او قدر ته تشويق پکښې دئ. دستونزو په وخت کې غمگين مه اوسئ، صبر او حوصلې ته بلنه ورکوي، دخدای (ج) په ذکر سره دمرستې غوښتنه او غضب نه کول دي.**

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**لا تباغضوا ولا تحاسدُوا ولا تدابروا ولاتقاطعُوا**» يعنې مه غيبت کوی، مه دښمني، نه حسد او کينه او نه مقاطعه. (متفق عليه له انس څخه).

- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿ما أصابَ منْ مُصيبَةٍ في الأَرْضِ وَ لا في أَنْفُسكُمْ إلاَّ في كتَاب مَنْ قَبْلِ أَنْ نَبْرَ أَهاً ، إنَّ ذَلكَ على اللّه يَسيرٌ ... لَكَيْلا تَأْسَوْاَ عَلي ماَ فَاتَكُمْ﴾ (الحديد ۲۲ - ۲۳) ټول مصيبتونه او ستونزې تاسو سره او يا که ځمکی ته رسيږی دا ټول مخکی له مخکی ليکل شويدي او دا کار خدای (ج) ته آسانه دئ چې کوم شی چې ستاسو له لاسه ځي پری غمگين نشی.

- حضرت پيغمبر ﷺ فرمايي: «**واعلم أنَّ ما أصابک لم يکن ليُخطئک وما أخطأک لم يکن ليُصيبک، واعلم أنَّ النصر مع الصبر، و أن الفَرَجَ مع الكَرْبِ و أنَّ مع العُسرِيُسرا**» يعنې پدې وپوهيږه! څه شی چې تا ته دررسيږی تا نه غلطوی او حتمي دررسيدونکې ده. کوم څه چې تا ته ندي دررسيدلي، دا سې نده چې گنی ته يې غلط کړئ يې او پدی هم وپوهيږه چې بريا ليتوب په صبر سره او پراخوالئ په تکليف او تنگی سره ده، د هر سختی سره آساني هم شته. (پر ته له ترمذی د جماعت په روايت له ابن عباس څخه).

- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿وَلَمَنْ صَبَرَ وَ غَفَرَ إنَّ ذَلكَ لَمنْ عَزْمِ الأُمُورِ﴾ (الشوری: ٤٣) يعنې هر څوک چې صبر وکړي او عفوه يا بخښنه وکړي دا د مقصد يا هدف کار دئ.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**الصبرُ ضياءٌ**» يعنې صبر رڼايي او روښنايي ده.

- حضرت پيغمبر ﷺ فرمايي: «**من يتصبّر يُصَبِّرْهُ الله**» يعنې څوک چې صبر وکړی، خدای (ج) هغه صبر کوونکي گرځوي. (د مسلم په روايت له ابی مالک الاشعری څخه).

- الله تعالی (ج) فرمایی: ﴿ أَلا بِذِكْرِ اللَّهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ ﴾ (الرعد: ۲۸) یعنې آګاه اوسی چې زړونه دخدای (ج) په یاد او ذکر سره آرامیږی.
- حضرت پیغمبر ﷺ فرمایی: «لا تَغْضَبْ» مه په قهریږه. (دبخاری په روایت له ابی هریره څخه).

## ۵۰ - اسلام په بل چا ملنډې غندلي او دنورو بدن، روح، شرف او آبرو ته زیان رسول یې منع کړي او همدارنګه په خلکو باندی جبر، اکراه او غضب جایز نه بولی.

- الله تعالی (ج) فرمایی: ﴿ لا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِنْ قَوْمٍ عَسَىٰ أَنْ يَكُونُوا خَيْراً مِنْهُمْ وَلا نِساءٌ مِنْ نِساءٍ عَسَىٰ أَنْ يَكُنَّ خَيْراً مِنْهُنَّ ﴾ (الحجرات: ۱۱) یعنې یو قوم دې په بل ملنډې نه وهي امکان لري چې مسخره شوی قوم دخدای په نزد تر مسخره کوونکي قوم بهتر وي. او نه دی ښځې نوری ښځې تمسخر کوي ښایی چې مسخره شوې ښځې تر مسخره کوونکو ښځو بهترې وي.
- الله تعالی (ج) فرمایی: ﴿ وَيْلٌ لِكُلِّ هُمَزَةٍ لُمَزَةٍ ﴾ (الهمزة: ۱) افسوس دې وی دهغه چا په حال چې عیب جویي او غیبت کوي.
- الله تعالی (ج) فرمایی: ﴿ وَ لا يَغْتَبْ بَعْضُكُمْ بَعْضاً ﴾ (الحجرات: ۱۲) یو دبل غیبت مه کوی.
- الله تعالی (ج) فرمایی: ﴿ لا إِكْراهَ فِي الدِينِ ﴾ (البقره: ۲۵۶) په دین کې اکراه او اجبار نشته.
- الله تعالی (ج) فرمایی: ﴿ أَفَأَنْتَ تُكْرِهُ النَّاسَ حَتَّىٰ يَكُونُوا مُؤْمِنِينَ ﴾ (یونس: ۹۹) یعنې آیا ته جبر کوې؟ چې خلک ایمان راوړی؟
- الله تعالی (ج) فرمایی: ﴿ لَسْتَ عَلَيْهِمْ بِمُصَيْطِرٍ ﴾ (الغاشیه: ۲۲) ته دهغو په زړونو تسلط نلرې.

● حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**لا ضرر و لاضرار**» یعنې نه چاته ضرر یا زیان رسول جواز لری او نه دضرر ځواب په ضرر ورکول. (دابن ماجه او احمد په روایت له جابر الجعفی څخه او د دارقطنی په روایت له عمرو بن یحییٰ څخه)۰

● الله تعالی (ج) فرمایی: ﴿والَّذينَ يُؤْذُونَ الْمُؤْمنينَ وَالْمُؤْمنَات بِغَيْرِ ما اكْتَسَبُوا فَقَد احْتَمَلُوا بُهْتاناً وَ إِثْماً مُبيناً﴾ (الاحزاب: ۵۸) یعنې: هغه څوک چې مسلمان نارینه او ښځې آزاروي حال دا چې هغوی کومه ګناه ونلري، په تحقیق سره هغوی د ځرګند بهتان او ګناه کوونکي دي.

● حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**إن الله يُعذِّبُ الّذين يُعذِّبون الناس في الدنيا**» یعنې خدای (ج) په آخرت کې هغو کسانو ته عذاب ورکوي چې خلکو ته یې په دنیا کې عذاب ورکړی وی. (دمسلم په روایت له هشام بن حکیم بن خزام څخه)۰

● حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**إنّک إن اتّبعت عورات الناس أفسدتهم**» یعنې او که ته دخلکو د عورتونو پلتنه کوې، هغه فاسدوې. (دابوداود په روایت په صحیح اسنادو سره له معاویه څخه) .

**۵۱- مسلمان د دخانیاتو، نشه ایزو موادو او مخدراتو له دولونو څخه ډډه کوي. یعنې هر هغه څه چې مال، جسم، عقل او نورو ته زیان رسوي چې تر ټولو بدیې ټولنیز مفاسد او ضررونه دي، منع کړیده.**

● الله تعالی (ج) فرمایی: ﴿يَسْأَلونَكَ عَنِ الخَمْرِ وَالمَيْسرِ قُلْ فيهما إِثْمٌ كَبيرٌ﴾ (البقره: ۲۱۹) یعنې د شرابو او قمار د حکم په هکله له تا څخه پوښتنه کوی، ورته ووایه چې په هغو دواړو کې لویه ګناه ده.

● الله تعالی (ج) فرمایی: ﴿قُلْ إِنَّما حَرَّمَ رَبِّيَ الفَواحِشَ ما ظَهَرَ مِنْها وَما بَطَنَ وَالإِثْمَ﴾ (الاعراف: ۳۳) یعنې ووایه چې خدای (ج) ځرګنده او پټه فحشاء او ګناه حرام ګرځولې.

● حضرت رسول الله ﷺ له هر نشه راوړونکی او دغړو له سستونکي څخه منع

کړیده. (داحمد او ابوداوود په روایت له ام سلمه څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**ألا إنَّ کُلَّ مُسکرٍ حرام، وکُلَّ مُخدِّرٍ حرام، وما أسکَرَ کثیرهُ حرُم قلیلُهُ، و ما خمر العقل فهُو حرام**» یعنې آګاه یا خبردار اوسئ چې هر نشه راوستونکئ او دغړو سستونکئ (مسکراومخدر) حرام دئ او هر څه چې نشه راولی کم او زیات یې حرام دئ او هر شی چې عقل مختل کوي هغه حرام دئ. (دابونعیم په روایت له انس بن حذیفه څخه).

## ۵۲- اسلام دد خانیاتو له استعمال سره مبارزه کوي او همدارنګه زیانونه او مفاسدیې روغتیا ته ثابت کړیدي نو جواز نلري چې په استعمال سره یې ځانونه په هلاکت کې واچوي او مه نورو ته او په خاص دول ماشومانو او امیندواره ښځوته آزار رسوي.

- الله تعالی (ج) فرمایي: ﴿وَلَا تَقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ﴾ (النساء:۲۹) یعنې خپل ځان مه وژنئ.

- الله تعالی (ج) فرمایي: ﴿وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ﴾ (البقره:۱۹۵) یعنې خپل ځان پخپله په هلاکت کې مه اچوئ.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**لا ضَرَرَ ولا ضِرار**» یعنې نه ضرر رسول جواز لري او نه دضرر ځواب ورکول په ضرر سره. (ددارقطنی په روایت له عمرو بن یحیی او ابن ماجه او احمد په روایت له جابر الجعفی څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**من کان یؤمنُ بالله والیوم الآخر فلا یُؤذِ جارهُ**» یعنې څوک چې په خدای او دقیامت په ورځې ایمان لري نو باید خپل ګاونډي ته زیان ونه رسوي. (متفق علیه له ابی هریره څخه).

- الله تعالی (ج) فرمایي: ﴿والَّذينَ يؤْذُونَ الْمُؤْمنينَ والْمُؤْمنات بغَيْر ما اكْتَسَبُوا فَقَد احْتَمَلُوا بُهْتاناً وإِثْماً مُبيناً﴾ (الاحزاب:۵۸) یعنې څوک چې مسلمانان نارینه او ښځې پرته له کومې ګناه آزاروي، په تحقیق سره هغوی

دبهتان او ښرګندې ګناه کوونکې دي.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**لاتُؤْذِ جارَکَ وَلَوْ بِقُتارِ قِدْرِکَ**» يعنې خپل ګاونډي مه اذيت کوه حتی د پخلي په بوی باندې. (په مکارم الاخلاق کې دخرائطي په روايت)·

**۵۳- اسلام دناروغيو په غرض په وقايې امر کوی او دطبيبانو دوصيت پر اساس يې لازم بولي. پدې وقايه کې دساري ناروغيو ضد ستنې او دناروغيو دسرايت له منبع څخه لرې والئ شامل دي.**

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**ومن يَتوقَّ الشرَّ يوقه**» څوک چې خپل ځان له شر څخه وقايه کړئ الله پاک هغه وقايه کوی. (دالخطيب په روايت په حسن اسنادو سره له ابی هريره څخه)·

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**لا ضرر ولا ضرار**» يعنې چاته ضرر مه رسوئ او ضرر په ضرر مه ځوابوئ. (ددارقطنی په روايت له عمر بن يحيی او دابن ماجه او احمد په روايت له جابر الجعفی څخه)·

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**لاعدْویٰ ولاطيرة**» يعنې نه سرايت شته او نه بدفالی. (دبخاری په روايت له عبدالله بن عمرو او انس بن مالک څخه)·

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**لايُورِدُ المُمرِضُ على المُصِحِّ**» ناروغ دې پر روغ سړی نه ورننوځی. (دبخاری، مسلم، ابو داوود او احمد په روايت له ابی هريره څخه)·

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**إذا سَمِعتُم بالطاعون بأرض فلا تدخُلُوها، وإذا وقع بأرض وأنتم بها فلا تخرجُوا منها**» يعنې که مو واوريدل چې په کومه سيمه کې دوبا ناروغي خپره ده، هغې ته مه ورننوځئ او که تاسی په دی سيمه کې وی چې وبا پکښې وي نو ورڅخه به نه وځئ. (دبخاری په روايت له اسامه بن زيد څخه)·

**۵۴- اسلام دناروغيو په تداوي کولو امر کوي په خاص ډول دهغو ناروغيو چې**

**د پرمختګ او پراختیا په حال کې وي او د نورو خطرناکو ناروغیو سبب کیږي.**

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**تداووا! فأن الله لم يُنزِل داءً إلا أنزل له شِفاءً**» یعنې تاسو تداوي وکړئ ځکه خدای (ج) دهرې ناروغۍ لپاره علاج او شفا هم پیدا کړې. (د طیالسي په روایت له عبدالله څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**لِكُلِّ داءٍ دواءٌ، فاذا أصيب دواء الداء برأ باذن الله تعالى**» یعنې هر درد درمل لري، کله چې دا درمل ناروغۍ ته وروړسیږي نو دخدای په اراده شفا پیدا کوي. (داحمد او مسلم په روایت له جابر څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**لا ينبغي للمُؤمن أن يُذِلَّ نفسه**» قالوا: وكيف يذل نفسه؟ قال: «**يتعرَّضُ من البلاء لِمَا لا يُطيقُهُ**» یعنې مسلمان ته نه ښایي چې ځان ذلیل کړي، پوښتنه وشوه سړی څرنګه ځان ذلیلوي؟ ویې فرمایل ځان په داسې بلا کې اچوي چې توان یې نلري. (دابن ماجه او احمد په روایت له حذیفه څخه)
- حضرت رسول الله مبارک ته وویل شول: تاسو څه وایئ که مونږ دم او دعا وکړو اویا ناروغي په دوا او پرهیز سره تداوي کړو، آیا دا څیزونه دالهي قدر او قضا ردوي؟ ویې فرمایل دا څیزونه پخپله دالهي دقضا او قدر له جملې څخه دي.

(د ترمذي په روایت له ابی خزامه څخه).

**۵۵- اسلام دچاپیریال په ساتنې امر کوي. له تیري، زیاتي یا اسراف او طغیان څخه دطبعیت په استفاده او استعمال کې، میزان ته له پامه‌لرنی پرته منع کوي. او له هغه فساد څخه چې د حیوان او نبات دهلاکت او مړینې سبب کیږي منع کوي او کرهنې ته هڅونه کوي. هر څه چې دچاپیریال داصلاح سبب کیږي هغه خوښوي، دونو قطع کول او دحیواناتو وژل جایز نه بولي. دچاپیریال ککړتوب او دطبیعت نارلتوب په هر ډول چې وي منع کوي او په نظافت یې امر کوي.**

- الله تعالى(ج) فرمايي: ﴿ وَوَضَعَ الميزانَ : أنْ لا تَطْغَوْا في الميزانِ ﴾ (الرحمن:۷-۸) يعني خداى(ج) دميزان تله پيدا کړې چې له هغو څخه تيرئ ونکړئ.
- الله تعالى(ج) فرمايي: ﴿ وَلا تَعْثَوْا في الأرْضِ مُفْسِدِينَ ﴾ (البقره: ٦٠) يعني دځمکی پرمخ فساد مه راپيدا کوئ.
- الله تعالى(ج) فرمايي: ﴿ وَلا تُطيعُوا أمْرَ المُسْرِفينَ : الَّذينَ يُفْسِدُونَ فى الأرْضِ ﴾ (الشعراء: ۱۵۱-۱۵۲) داسراف کونکو له اوامرو څخه پيروي مه کوئ. دوی هغه کسان دي چې دځمکې په مخ فساد کوي.
- الله تعالى(ج) فرمايي: ﴿ وَلا تَبْغِ الفَسادَ في الأرْضِ ﴾ (القصص: ۷۷) يعني دځمکې پرمخ تباهی او فساد مه غواړه.
- الله تعالى(ج) فرمايي: ﴿ وَإذا تَوَلّى سَعى في الأرْضِ لِيُفْسِدَ فيها وَيُهْلِكَ الحَرْثَ والنَسْلَ ... وَاللهُ لا يُحِبُ الفَسادَ ﴾ (البقره: ۲۰۵) يعني که دځمکی دمخ ولايت ونيسي، نو کوښښ مه کوئ ترڅو په هغه کې فساد رامنځ ته کړئ او نبات او حيوان هلاک کړئ، او خداى(ج) فساد نه خوښوي.
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**لايغرسُ المُسلمُ غرساً ولايزرعُ زرعاً فيأكلُ منه إنسانٌ ولادابّةٌ ولا شيء إلا كانت له صدقة**» يعني مسلمان چې کوم نيالګئ کښينوي او يا يوه دانه کري، او انسان او حيوان له هغې څخه څه وخوري، هغه ورته صدقه ده. (دمسلم په روايت له جابر څخه).
- حضرت محمد ﷺ دمديني منورې په بيلو بيلو برخو کې دونو وهل او دپاڼو شکول منع کړي ؤ مګر هغه لښتې چې داوښانو دلارته سمولو او پرمخ بيولو لپاره يکارؤ. (دابوداوود په روايت له عدی بن زيد څخه).
- رسول الله ﷺ دمديني دونو وهل يا قطع کول منع کړي ؤ. (دابو داوود په روايت له سعد بن ابو وقاص څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**إني أُحرِّمُ ما بين لابتي المدينة : أن يُقطع عضاهها أو يُقتل صيدُها**» يعنې ما د مدينې دونو قطع كول او د مدينې د دوه غرونو تر منځ ښكار حرام كړئ دئ. (دامام احمد په روايت له سعد بن ابو وقاص څخه).
- په طايف كې د وجّ دناوې يا درې په هكله حضرت پيغمبر ﷺ فرمايي: «**إنَّ صيد وجّ وعِضاهُ حرامٌ**» يعنې د وج په وادۍ كې دونو قطع كول او ښكار كول حرام دي. (دامام احمد او ابوداوود په روايت له زبير څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**اتَّقُوا الملاعن الثلاث : البراز في الموارد، وقارعة الطريق، والظلّ**» يعني دلعنت له درې سببونو څخه پرهيز او ډډه وكړه يو دخلكو داوبو خور يا اوبواخستنې په ځاى كې بولې او ډكې كول، بل په څلور لارو او په سيورو ځايونو كې. (دابوداوود په روايت له معاذ بن جبل څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**إماطةُ الأذى عن الطريق صدقة**» يعنې دلارې څخه د آزاروونكي ليرې كول صدقه ده. (دابو داوود په روايت له ابی ذر څخه)
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**الإيمان بضع وسبعون شعبة ... أدناها إماطة الأذى عن الطريق**» يعنې ايمان څو اويا شاخې ده، تر ټولو ټيټه شاخه يې دخلكو له لياری څخه د آزار ليرې كول دي. (دمسلم په روايت له ابی هريره څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**عُرضت علي أعمالُ أمّتي : حسنُها وسيِّئُها، فوجدتُ في محاسنِ أعمالها : الأذىُ يُماطُ عن الطريق، ووجدتُ في مَساوىءِ أعمالها النُخامة تكوُنُ في المسجد لا تُدْفَنُ**» يعنې زما دامت عملونه ما ته تقديم شول چې ښه او خراب عملونه پكښې دي. دښو عملونو په منځ كې مې يو هم دلارې څخه د آزار ليرې كول وليدل او دبدو اعمالو په جمله كې مې د پوزې داوبو اچول په جومات كې چې ښخ كړی يې نه وی. (دمسلم او ابن ماجه په روايت له ابی ذر څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**مَن قطع سِدرةً (يعني دون مُبرّرٍ) صَوَّب الله**

**رأسُهُ في النار** » يعنې څوک چې ونه بې ضرورته قطع کړي، خدای(ج) يې سر په اور کې اچوي. (دابوداوود په روايت له عبدالله بن حبشي څخه).

## ۵۶- اسلام دسپين ږيرو او سپين سرو دبدني او روحي روغتيا ساتنې ته امر کړئ په خاص ډول د کورنۍ په چوکاټ کې چې پدې کار کې د مشرانو احترام، اکرام او احسان نغښتی دئ.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: « **ليس منّا من لم يرحم صغيرَنا ويعرِف حقّ كبيرِنا** » يعنې زمونږ له ډلې څخه ندی هغه څوک چې په کشرانو ترحم او شفقت او د مشرانو حق ونه پيژني. (دابوداوود په روايت له عمرو بن شعيب او د ترمذي په روايت چې دا حسن حديث دئ).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: « **ما أكرم شابٌّ شيخاً لِسِنّه إلا قيّض اللهُ له من يُكرِمُهُ عند سِنّه** » يعنې هر ځوان چې د زړو خلکو احترام د هغو د زړښت له کبله کوي، خدای(ج) داسې کسان گماري چې په پرمخ تللي عمر کې بيا د هغه احترام وکړي. (د ترمذي په روايت له انس څخه).

- الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿ إِنَّا يَبْلُغَنَّ عِنْدَكَ الكِبَرَ أَحَدُهُما أَوْ كِلاهُما فَلا تَقُلْ لَهُما أُفٍّ وَلاَ تَنْهَرْهُما وَقُلْ لَهُمَا قَوْلاً كَرِيماً ﴾ (الاسراء: ۲۳) يعنې که چيرې ستاسو والدين يعنې مور او پلار او يا يو له هغو څخه ستاسو په وړاندې د زړښت عمر ته ورسيږي، نو ورته اوف مه وايئ، ورته مه په غصه کيږئ، ښې نيکې خبرې ورسره وکړئ.

- الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿ وَبِالْوالِدَيْنِ إِحْساناً ﴾ (النساء: ۳۶) يعنې پلار او مور سره احسان وکړئ.

- الله تعالی(ج) فرمايي: ﴿ وَوَصَّيْنا الإِنْسانَ بِوالِدَيْهِ حُسْناً ﴾ (العنکبوت: ۸) يعنې انسانانو ته مو وصيت وکړ چې له مور او پلار سره نيکي وکړي.

موادو په برابرولو کې زمونږ وررور استاد ډاکټر محمد عبدالعال عثمان دهغه سره مرسته کړې او ونډه يې اخيستې ده. همدا ډول يو ګڼ شمير پوه استادانو چې پدې کنفرانس کې يې برخه درلوده يوه اندازه دارزښت نه ډکې څيړنې پرې ورزياتې کړې او په پای کې پدې سره متفق شول چې دطبي علومو اسلامي سازمان دې هغه چاپ او خپور کړي هيله ده چې دکنفرانس دبحثونو او کړنلارو دا مجموعه انشاء الله ژر ديو کتاب په شکل چاپ شي.

وروسته تر هغو دنړيوالې روغتيايي اداري منطقوي دفتر لازم وګڼله چې دغه لنډه رساله چې ستاسو په لاس کې ده ترتيب او خپره کړي نو وررور ډاکټر هواري يې پدې وګماره تر څو دکنفرانس تر ټولو مهمې موضوعګانې چې نتيجې ته پرې رسيدلي دي لنډيز کړي. د اردن پوهنتون دشرعياتو دپوهنځي ځنې ورونو دځينې حديثونو په څيړنې او راغونډولو لاس پورې کړ، چې استاد ډاکټر محمد هيثم خياط هم داحاديثو په څيړنې او راټولولو سره يوه جامع وثيقه په نهايي شکل وليکله. مونږ د رب تعالیٰ څخه دا استدعا او هيله لرو چې دروغتيايي لارښوونو له لړۍ څخه دغه کړۍ هم خلکو ته ګټه ورسوي لکه چې نورو کړيو يې داهدف ترلاسه کړی دئ. خدای(ج) دې ددې رسالې دمخونو په شمير دهغو ګډون کوونکو او ترتيبوونکو ته اجر او ثواب نصيب کړي او الله بارک وتعالیٰ دې ټول بشريت ته دا برئ ورپه برخه کړي چې ددی نيکو او ګټورو لارښوونو څخه ګټه واخلي دالله(ج) په دې وعدې چې: ﴿ وَلِكُلٍّ دَرَجَاتٌ مِمَّا عَمِلُوا ، وَلِيُوَفِّيَهُمْ أَعْمَالَهُمْ وَهُمْ لاَ يُظْلَمُونَ ﴾ يعنې دهر چا لپاره دهغه دعمل او کار په اندازه درجې شته، او تر څو چې خدای(ج) دهغو داعمالو بشپړ ثواب ورکړي، په هغو ظلم نه کيږي.

دډاکټر حسين عبدالرزاق جزائري

لاسليک

**۵۷- اسلام د آواز له لوړیدلو، غالمغال او هر څه چې د خلکو د زیان سبب شي، منع کوي او همدارنګه د تشدد له بیلابیلو دولونو څخه یې منع کړیده.**

- الله تعالی(ج) فرمایی: ﴿ وَاغْضُضْ مِنْ صَوْتِكَ، إِنَّ أَنْكَرَ الأَصْوَاتِ لَصَوْتُ الحَمِيرِ ﴾ (لقمان:۱۹) آواز دی ټیټ کړه چې بدترین آواز دخره آواز دئ.

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**من ضارَّ أضر الله به، ومن شاقَّ شقَّ الله عليه**» یعنې څوک چې چا ته ضرر رسوي، خدای(ج) هغه ته ضرر رسوي او څوک چې سخت ګیري وکړي، خدای(ج) دهغه سره سخت ګیری کوي. (دابن ماجه او ابو داوود په روایت له ابی صرمه څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**إن الله يُبْغِضُ كل جعظريٍّ (فظٍّ) جوَّاظٍ (جَموعٍ مَنوعٍ) سخَّابٍ (صخَّابٍ) في الأسواق**» یعنې خدای(ج) هر بدخلقه، بخیل او غالمغالی د بازار بدویني. (دابن حبان په روایت له ابي هریره څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**عليكِ بالرِّفق و إيّاكِ و العُنْفَ**» یعنې نرمي په ځان لازم وګرځوه او له شدت څخه ډډه او پرهیز وکړه. (دبخاری په روایت له بی بی عایشې څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**إن الله رفيقٌ يحبُّ الرِّفق، و يُعطي على الرفق مالا يعطي على العنف و مالا يعطي على سواه**» یعنې خدای(ج) نرم دئ، نرم کسان خوښوي، هر څه چې ورکوي په نرمۍ یې ورکوي نه په شدت یا غیر له نرمۍ. (دمسلم په روایت له بي بي عایشې څخه).

- حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**والله لا يؤمن ... من لا يأمنُ جاره بِوائِقَهُ (غوائِلَهُ و شُرُورهُ)**» یعنې په خدای قسم دئ چې ایمان نه راوړي ... هغه کسان چې ګاونډیان یې له ضرره څخه په امان کې نه وي. (متفق علیه له ابی هریره څخه).

**۵۸- اسلام زده کړه تشویقوي او هغه د ښځې او نارینه فریضه بولي. په هغه علم**

**تینګار کوي چې ګټور وي. دا پټه نده چې زده کړه د شاګرد روغتیايي او مدني سطح لوړه بیايي.**

- الله تعالی (ج) فرمايي: ﴿هَلْ يَسْتَوِى الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لا يَعْلَمُونَ﴾ (الزمر: ۹) یعنې آیا پوه او ناپوهه برابر دي؟
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**طلبُ العلم فريضةٌ على كُلِّ مسلم**» یعنې د علم طلب او زده کړه پر هر مسلمان فرض ده. (دابن ماجه په روایت له انس بن مالک څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**الناسُ عالمٌ و متعلّمٌ، ولاخير فيما بَعدَ ذلک**» یعنې خلک یا عالم دی یا متعلم (زده کوونکی) لدې بهر خیر نشته. (ددارمی په روایت له ابی درداْ څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**اللّهمَّ إني أعوذبِک من علم لا ينفعُ**» یعنې اې خدایه تاته پناه دروړم له هغه علم څخه چې ګټور نه وي. (مسلم په روایت له زید ابن ارقم څخه).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**إنّما العلم بالتعلّم**» یعنې علم په زده کړی ده. (دخطیب په روایت له ابی هریره څخه او حسن حدیث دئ).
- حضرت رسول الله ﷺ فرمايي: «**علّموا ويسّروا ولا تُعسّروا و بشّروا ولا تُنَفّرو**» یعنې د علم ښوونه وکړئ، آسان ګیري وکړئ، سخت ګیري مه کوئ، زیرئ ورکړئ، خلک له ځانه مه تېرا کوئ. (دبخاری په روایت په ادب مفرد کې او هم احمد له ابن عباس څخه).

**۵۹- اسلام کار تشویقوي او د کارګر قدر کوي. کار په انسان کې د پرمختګ اغیزه ده چې ژوند ټول اړخونه پرې ښه کیږي له هغو جملې څخه روغتیايي اړخ. نو ځکه دلاس کار بدني روغتیا او دماغي کار روحي روغتیا ته ګټور دئ. د کار له حاصل څخه د انسان ښستیزې اړتیا وې رفع کیږي چې له هغو**

**جملې څخه ده روغتیا او سلامتي.**

- خدای(ج) فرمایی: ﴿ جَعَلَ لَكُمُ الأَرْضَ ذَلُولاً فَامْشُوا فِي مَنَاكِبِهَا وَ كُلُوا مِنْ رِزْقِهِ ﴾ (الملک: ۱۵) یعنې ځمکه یې درته رام گرځولې، دهغې په شاوخوا وگرځئ او دخدای (ج) له روزي څخه وخورئ.
- الله تعالی(ج) فرمایی: ﴿ فَإِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ ﴾ (الشرح: ۷) یعنې چې کله فارغ شوې، کار وکړه.
- الله تعالی(ج) فرمایی: ﴿ أَنْشَأَكُمْ مِنَ الأَرْضِ وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيهَا ﴾ (هود: ٦١) یعنې تاسوېې له ځمکې پیدا کړئ او ویې غوښتل چې تاسو هغه آباده کړئ.
- الله تعالی (ج) فرمایی: ﴿ مَنْ عَمِلَ صَالِحاً مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى وَ هُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَاةً طَيِّبَةً ﴾ (النحل: ۹۷) یعنې څوک چې نیک کار وکړي، ښځه وي که نارینه، هغه په نیک ژوندانه را ژوندئ ***کړای شوئ دئ*** .
- حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**خیرُ الکسب کسبُ ید العامل إذا نصح**» یعنې تر ټولو ښه کسب د کارگر د لاس کسب دئ، پدې شرط چې مخلص او صادق وي. (داحمد په روایت له ابی هریره څخه) .
- حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**ما أکل أحدٌ طعاما قطُّ خیراً من أن یأکُلَ من عمل یده، و إنَّ نبي الله داود کان یاکُلُ من عمل یدِهِ**» یعنې هیڅا دخپل دلاس د کار تر خوړو څخه ښه او خوندور خواړه ندی خوړلي. حضرت داوود پیغمبر دخپل لاس د زحمت او کار څخه خواړه خوړل. (دبخاری په روایت له مقداد بن معدی کرب څخه) .
- حضرت رسول الله ﷺ فرمایی: «**أطیبُ الکسب عملُ الرجُل بیده**» یعنې تر ټولو پاک کسب او روزي دانسان دخپل دلاس ده » (داحمد او طبرانی په روایت په الاوسط کې او دحاکم په روایت لم رافع بن خدیج څخه) .

● الله تعالیٰ (ج) فرمایي: ﴿ وَلَقَدْ مَكَّنَّا كُمْ فِى الأَرْضِ وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيهَا مَعَايِشَ ﴾ (الاعراف: ۱۰) یعنې مونږ تاسو ته په ځمکه قدرت درکړ او ستاسو روزی مو درته پیدا کړه.

● حضرت پیغمبر ﷺ فرمایي: «**على كُلِّ مسلم صدقة**» قالوا: فان لم يجد؟ قال: «**فيعملُ بيديه فينفعُ نفسهُ و يتصدّقُ**» یعنې پر هر مسلمان صدقه لازم ده، پوښتنه وشوه که یې ونه مومي؟ ویې فرمایل: پخپلو لاسو دې کار وکړي، ځانته دې ګټه ورسوي او صدقه دې هم ورکړي. (متفق علیه له ابی موسیٰ الاشعری).

● حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**اليدُ العُليا خيرٌ من اليد السُفلىٰ**» یعنې جګ لاس غوره او بهتر دی تر کښته لاس. (متفق علیه له حکیم بن حزام څخه).

## ٦۰- اسلام امر کوي چې انسان باید استراحت وکړي، ځکه چې هغه کار ته ګټور او د بدن د روغتیا لپاره ضروری ده.

● حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**يا حنظلة! ساعةٌ و ساعةٌ**» یعنې ای حنظله یو ساعت کار او یو ساعت استراحت وکړه. (د مسلم په روایت له حنظله بن ربیع څخه).

● حضرت رسول الله ﷺ فرمایي: «**كُلُّ شيءٍ ليس من ذكر الله عزّوجلَّ فهو لغوٌ و لهوٌ أو سهوٌ إلَّا أربع خِصَالٍ ... و ذَكَرَ ملاعبة الرجل أهله**» یعنې هر هغه څه چې د خدای ذکر او یاد پکښې نه وي هغه لهو لعب یا سهوه او خطا ده مګر څلور څیزونه ... او په هغه کې یې د نارینه مستي او ساعت تیرې کول له خپلې کورنۍ سره ذکر کړل. (په معجم الکبیر کې د طبرانی په روایت له جابر څخه)

والحمد لله رب العالمين

## دکنفرانس دګډون کوونکو نومونه

(دهجأ د تورو په ترتیب)

ډاکټر إبراهیم بدران
ډاکټر إبراهیم زید الکیلانی
ډاکټر أحمد رجائي الجندي
ډاکټر أحمد صدقي الدجاني
ډاکټر أحمد عروة
ډاکټر اکبر مهدی
ډاکټر اکمل الدین احسان اوغلي
محترم انعام المفتي
ډاکټر جمال عطیة
ډاکټر جمال ماضی ابو العزایم
ډاکټر حسان حتحوت
ډاکټر حسین عبدالرزاق الجزائری
ډاکټر خالد المذکور
استاذ ریحان شریف
ډاکټر زهیرة عابدین
ډاکټر سعید شیبان
محترم سهام الکرمی
ډاکټر طه جابر العلوانی
شیخ عبدالحمید السائح

شیخ عبدالرحمن آل محمود
ډاکټر عبدالرحمن العوضي
استاذ عبدالهادي بوطالب
ډاکټر علي السیف
ډاکټر عمر سلیمان
ډاکټر غازي أبوشقرة
استاذ فهمي هویدي
استاذ محمد أبوالقاسم حاج حمد
شیخ محمد الغزالي
ډاکټر محمد الهواري
شیخ محمد المختار السلامي
ډاکټر محمد سلیم العوا
ډاکټر محمد شعلان
ډاکټر محمد عبدالسلام
ډاکټر محمد عبدالمنعم أبوالفضل
ډاکټر محمد عبدالقادر بافقیه
ډاکټر محمد عمارة
ډاکټر محمد معروف الدوالیبي
ډاکټر یوسف القرضاوي

ډاکټر محمد هیثم الخیاط

بسم الله الرحمن الرحيم

# داسلامي ژوندانه د تګ لارې په هکله او د روغتيا په ښه والي او په عمومي ډول د ژوندانه د سطحې په لوړ والي باندې د هغو د اغيزو د کنفرانس

# د پـــاى وينـــا

**عمان ، د هاشمي اردن هيواد**

د ۱٤۰۹ هـ کال د ذوالقعدې ۱۹-۲۲ چې برابره ده له ۲۳-۲٦/٦/۱۹۸۹ م سره .

د نړيوال روغتيايي سازمان د ختيځې مديترانې د حوزې سيمه ايز دفتر پدې عقيده دئ چې روغتيا عبارت ده د انسان له بشپړ بدني، روحي او اجتماعي يا ټولنيز عافيت او سلامتۍ څخه او د اسلام مبين دين دې سلامتۍ ته په داسې ستر ګه ګوري چې هغه د شريعت او عقيدې يو لازمي جز بولي او په تيرو بيلابيلو وختونو کې يې تر عملي تطبيق لاندې نيولئ دئ. نو د ځمکې پر مخ د هغه د کاميابۍ او بريا ليتوب لپاره وګړنيز او ټولنيز ژوند بايد په اسلامي سلوک برابر شي تر څو د ژوندانه د اسلوک پر روغتيا خپله لازمه اغيزه ولري. پدې اړوند د نړيوال روغتيايي سازمان دې دفتر د طبي علومو اسلامي سازمان او د اسلامي څيړنو شاهي انجمن - د شاهي کورنۍ د آل و بيت موسسې ته بلنه ورکړه تر څو د دې سازمان په ګډون يو کنفرانس راوغواړي چې د اسلامي ژوندانه تګ لارې په هکله او د روغتيايي حالت د ښه والي او په مجموع کې د انسان په ودې باندې د هغو د اغيزې په اړوند بحث او خبرې اترې پکښې وشي. تر څو موږ هم په خپل وار سره د انسان خدمت ته د اسلام د تمدني ميراث په وړاندې کولو کې، چې سخت اړتيا ورته لري، ونډه اخستې وي.

الحمدلله چې دا کنفرانس د ۱٤۰۹ هـ ق کال د ذوالقعدې د مياشتې د ۱۹ څخه تر ۲۲

نیتې پورې چې د ۱۹۸۹ میلادي کال دجون دمیاشتې له ۲۳ څخه تر ۲٦ نیتو سره برابر ؤ د والاحضرت حسن ابن طلال ولیعهد تر قیادت او سرپرستی لاندې دهاشمي اردن په پایتخت دعمان په ښار کې جوړ شو. او دولیعهد په وکالت دعامې روغتیا وزیر پرانیست. پدې کنفرانس کې یو ګڼ شمیر دفقهو علماؤ، پوهانو، طبیبانو، مربیونو مفکرینو، اقتصاد پوهانو، دټولنیزو علومو متخصصینو، لیکوالانو، ژورنالستانو او دیو شمیر سازمانونو استاذو ګډون کړئ ؤ.

دکنفرانس په پرانستونکې غونډه کې دلاندې محترمو کسانو لخوا مقالې ولوستل شوې چې کنفرانس هغه دخپل د وثیقو یا سندونو په جمله کې شامل کړل: ډاکټر زهیر ملحس دمجلس سرپرست، ډاکټر عبدالرحمن-دطبي علومو داسلامي سازمان رئیس، عبدالله عوضي-دنړیوالې روغتیایي ادارې دختیځې مدیترانې دحوزې دسیمه ایز دفتر مدیر، ډاکټر حسین عبدالرزاق جزائري...

دکنفرانس غړو خپل دعمل پانو ته کتنه وکړه او ویې لیدل چې په هغو کې زیات زحمت ایستل شوئ وروسته بیا دعمل دبرنامې دڅیړنې په مقصد دکنفرانس غړي په څلورو ګروپونو وویشل شول چې هر ګروپ به په ځانګړی ډول خپله برخه تر غورمې وروسته تر څیړنې لاندی نیوله او دسهار لخوا به یې په عمومي غونډه کې برخه اخیستله او خپل دکار او کمیسیون نتیجې به یې وړاندې کولې، بیا به په هغو باندې عمومی جر و بحث او مناقشه، او پریکړه کیدله.

کنفرانس دپیل څخه داخر ګنده کړه چې ایمان په خدای دژوندانه دتګ لارې او سلوک بنسټ او اصلي محور دئ چې دژوند ټول ایجابات دهغه په شاوخوا راڅرخي او له هغه څخه سرچینه اخلي، چې له هغو جملې څخه بدني او روحي روغتیا او دژوندانه وده په عمومي ډول، هم ده.

په لمړي سر کې داسې کوښښ کیده چې اسلامي سلوک او تګ لار په بیلابیلو برخو کې تر څیړنې لاندې ونیول شي او دقرآن او نبوي سنتو په دلیل دهغو اصالت ثابت او په دوهمه مرحله کې ددې تګ لارې څخه دپیروی پر بنسټ مصالح جلب او مفاسد دفع شي.

پدې کونبس کې باید ټول وګړي، کورنۍ، ټولنه او ټول بشریت شامل وي ترڅو بدني او روحي روغتیا او ټولنیزې اړیکې او انسانیت سالم او په کراره پاتې شي. په دریمه مرحله کې دعمل دبرنامې وضع کول ؤ چې په څه ډول دا موضوع په کُلی ډول او یا ځنې اړخونه یې دعمل جامه واغوندي ترڅو د ژوندانه داصلاح پیل او عملي شوئ دلیل وګرځي.

همدارنګه کنفرانس لازم وبلله چې دخپل کارونو او عمل ثبتول یوه کمیسیون ته وروسپاري چې نصوص له قرآن او حدیثونو څخه بیرون او صحیح احادیث دسند سره بیان او په لنډ وخت کې هغه ترتیب او تیار کړي. او همدارنګه غونډې لازمه وبلله چې دنړیوالې روغتیایي اداري دسیمه ایز دفتر، دطبي علومو داسلامي سازمان او داسلامي خیرنو دشاهي انجمن - داهل و بیت موسسې ترمنځ ګډې مرستې او همکارۍ باید دوام ومومي ترڅو نور هم زیات کار وشي او داسلام لارښوونې او تعلیمات دبشر داړتیاؤو دپوره کولو په منظور او دغلطیو دصحیح کولو په لیار کې عملي شي او روغتیا دهغه پراخ مفهوم سره دبدني، روحي او نفسي اړخونو په شمول چې یو له بل څخه نه بیلیدونکي دي د ټولنې د ټولو غړو لپاره دبشریت په خدمت کې کرار ونیسي. دې غونډې پریکړه وکړه چې یوه اعلامیه د روغتیا دښه والي په منظور دعمان اعلامیې په نامه صادره کړي ترڅو په کنفرانس کې تر مناقشې وروسته، عملي او تطبیق شي.

مجلس دا وړاندیز په ډیره خوښۍ سره ومانه چې دنړیوالې روغتیایي اداري سیمه ایز دفتر، دطبي علومو اسلامي سازمان، داسلامي خیړنو دشاهي انجمن - خانداني موسسې او نورو سازمانونو تر منځ چې وغواړي او علاقه ولري، باید مرسته او همکاري دوام وکړي. پدې همکاریو کې به دښوونې او روزنې، او علم او فرهنګ اسلامي سازمان دنورالحسین موسسه، ددیني عقایدو نړیوال انستیتیوت، په اردن کې داسلامي سازمان مجلس، دزړه د روماتیزم دناروغانو ددوستانو ټولنې، په آخن کې اسلامي مرکز، داسلامي روزنې لپاره عربي ټولنه، په اروپا کې دمسلمانو شاګردانو اتحادیه، په اروپا کې دمسلمانو کارګرانو اتحادیه او درواني روغتیا لپاره نړیواله اسلامي ټولنه هم برخه واخلي.

کنفرانس له ټولو ذيعلاقه سازمانونو څخه هيله څرګنده کړه چې د کنفرانس د هيلو او ارمانونو په عملي کيدو کې مرسته او همکاري وکړي او د نړيوالې روغتيايي اداري سيمه ايز دفتر ته يې توصيه وکړه چې د دى اعلاميې او توصيو عملي او تطبيقي لارې چارې تنظيم او ترتيب کړي. همدارنګه دې کنفرانس د تلګراف په وسيله د اردن له پادشاه اعليحضرت ملک حسين څخه مننه وکړه چې د اردن هيواد يې د دې غونډې کوربه و مانه او همدارنګه د والاحضرت امير حسين ابن طلال وليعهد څخه چې کنفرانس د هغه تر سرپرستۍ او قيادت لاندې جوړ شو، له ډاکټر زهير ملحس د اردن د عامې روغتيا له وزير چې کنفرانس يې پرانيست، د اسلامي خيرنو د انجمن رئيس ډاکټر ناصرالدين اسد او د لوړو زده کړو وزير چې د دې کنفرانس د بريالیتوب لپاره يې زيات توجه او کوښښ کړئ، خپلې مننې څرګندوي.

کنفرانس د همدې وينا په اورولو سره د ۱۴۰۹ هـ ق کال د ذوالقعدې د مياشتې په ۲۲ د غرمې په ۱۲ بجو چې د ۱۹۸۹ ميلادي کال د جون د مياشتې له ۲۶ نيټې سره برابر ؤ پای ته ورسيد.

# دروغتیا دښه توب لپاره دعمان اعلامیه

داسلامي ژوندانه دتگ لارې او دهغه اغیزه دروغتیا په ښه والي او په عمومي ډول دانسان په ودې کنفرانس، چې د ۱٤۰۹ هـ.ق کال د ذوالقعدی دمیاشتی په ۱۹-۲۲ چې د ۱۹۸۹ کال دجون دمیاشتی له ۲۳-۲۶ سره برابره وه دعمان په ښار کې جوړ شو، لاندې اعلامیه دروغتیا دښه والی او «روغتیا دټولو لپاره تر دوه زرم میلادی کاله پوری» هیلې ته درسیدو په مقصد، صادره کړه.

ددې کنفرانس جوړیدل هم دختیځې مدیترانې داوسیدونکو دشدید ضرورت پر بنسټ ؤ ترڅو په روغتیایي موضوعگانو پخپله ژبه پوه او دټینگې عقیدې او دزړه داډ له مخې چې پرې لرې یې، هغه عملي کړي. دین دژوندانه دمحرّک او لمړني مرجع په توگه دپیژندلو او داصیلو او لرغونو روغتیایي رسالو او کتابونو پر بنسټ، چې ددې منطقې خلکو بشریت ته وړاندې کړیدئ او دنړیوالې روغتیایي ادارې ارمان هم همدا دئ چې روغتیا دټولو لپاره، او همدارنگه دالماتا د اعلامیې چې دلمړني روغتیایي مراقبتونو مراعتول دي، او د روانی روغتیا دنړیوالې ټولنې د پریکړې په پام کې لرلو سره، کنفرانس دغه لاندې اعلامیه صادروي چې:

لمړی - روغتیا دالهی نعمتونو څخه یو نعمت دئ چې ډیر خلک یې په قدر نپوهیږي، لکه څنگه چې په حدیث شریف کې څرگنده شوې ده.

دوهم - روغتیا د ژوند دعناصرو څخه یو عنصر دئ، ترڅو چې دژوند نور اساسي عناصر لکه آزادي، امنیت، عدالت ښوونه او روزنه، کار، کفایت، خواړه، اوبه، کالي، کور، واده او دچاپیریال ساتنه... موجود نه وي، بشپړیدای نشي.

# روغتيايي لارښوونې

د روغتيايي زده کړو لړۍ د ديني تعليماتو په رڼا کې




## د اسلامي ژوندانه د تګ لارې پر بنسټ

## د روغتيا د ښه والي لپاره د عمان اعلاميه







نړيواله روغتيايي اداره

دختيځې مديترانې لپاره سيمه ايز دفتر

# روغتیایي لارښووني

## دروغتیایي زده کړو لړۍ د دیني تعلیماتو په رڼا کې

## داسلامي ژوندانه دتګ لارې پر بنسټ

## دروغتیا دښه والي لپاره دعمان اعلامیه







نړیواله روغتیایي اداره

دختیځې مدیترانې لپاره سیمه ایز دفتر

دکتاب نوم : داسلامي ژوندانه دتګ لارې پر بنسټ دروغتيا دښه والي لپاره دعمان اعلاميه

خپروونکی : نړيواله روغتيايي اداره، دختيځې مديترانې لپاره سيمه ايز دفتر

دری ژباړونکئ : پوهاند نعمت الله شهراني

پښتو ژباړونکئ : پوهندوی ډاکټر بشير نورمل

کمپيوتر کوونکئ : امام الدين

تيراژ : ۲۰۰۰ ټوکه